د پوهنې وزارت

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکي د روزنې او د ساینس مرکز معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا لوی ریاست

# د ښوونکي لارښود

# پښتو

## د دري ژبو د پنځم ټولګي لپاره



د چاپ کال: ۱۳۹۵ هـ. ش

unicef

د هر ماشوم لپاره

برای هر طفل

From
the People of Japan

د پوهنې وزارت
د تعليمي نصاب د پراختيا او د ښوونکو د روزنې معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تأليف لوی رياست

# پنځم ټولگی

## د پښتو ژبې د ښوونکي
## د تدريس لارښود
## د دري ژبو لپاره

د چاپ کال: ۱۳۹۵ هـ. ش

## مؤلفان:

ـ د سرمؤلف مرستیال محمد سهراب دیدار

ـ مؤلف محمد عزیز حسین خیل

- د مؤلف مرستیال نصیر احمد امرخیل

## د ژبې ایډیټور:

ـ محمد قدوس زکوخیل

## دیني، سیاسي او کلتوري کمیټه:

ـ حبیب الله راحل دتعلیمي نصاب په ریاست کې دپوهنې وزارت سلاکار

ـ د سرمؤلف مرستیال گل اقا شایق داسلامیاتو د دیپارتمنت غړی

## د څارنې کمیټه:

ـ دوکتور اسدالله محقق دتعلیمي نصاب دپراختیا او د ښوونکو دروزنې معین

ـ دوکتور شیرعلي ظریفي دتعلیمي نصاب دپراختیا دپروژې مسوول

ـ سرمؤلف عبدالظاهر گلستاني دتعلیمي نصاب دپراختیا او درسي کتابونودتألیف لوی رییس

## طرح او ډیزاین:

- صفت الله مومند
- صدرالدین ابراهیم خیل



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، ګوجر دي — پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مودی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

## د پوهنې د وزیر پیغام

د لوی خدایﷻ ډیر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پر ګانه یې سمبال کړ.

ډیر درود دې وي د اسلام پر ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایي پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برې د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانۍ له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

**دوکتور اسدالله حنیف بلخي**

# لړلیک

# له ښوونکو سره يوځوخبرې

## درنو ښوونکو!

د ښوونکي دغه لارښود هغه مرستندوی کتاب دی چې د دري ژبو زده کوونکو د پنځم ټولګي د پښتو درسي کتاب د ښه تدريس او لارښوونې لپاره مرسته کولای شي.

دغه مرستندوی لارښود کتاب ځکه د ښوونکو لپاره ليکل کيږي چې په لومړي ګام کې په درسي کتاب باندې د بيا کتنې په اړتيا باندې پوه شي او دغه راز په درسي کتاب کې د انځورونو، د لوست د هڅوونکو پوښتنو او فعاليتونو په موخو او همد غو موخو ته د رسيدو لپاره د تدريس په ميتودونو او لاروچارو لاښه وپوهيږي او د لوست ورکولو په برخه کې به د يو مرستندوی کتاب په توګه ترې کار واخلي.

د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تأليف د لوی رياست په تشکيل کې د ريسرچ رياست له لومړي ټولګي څخه ترشپږم ټولګي پورې له اصولوسره سم له زده کوونکو، ښوونکو، سرمعلمينو، مديرانو او د زده کوونکو له او لياوو څخه د درسي کتابونو د بيا کتنې لپاره نظرونه را ټول کړل، هغه يې وڅيړل او اړوند څانګو ته يې وسپارل. د پښتو ژبې مؤلفينو دپښتو درسي کتاب په هکله نوموړې نظرونه په دقت سره مطالعه کړل، کوم چې د درسي کتابونو د سمون لپاره سم وو، هغه يې را واخيستل او خپل نظرونه يې هم ور سره يوځای کړل او له لومړي ټولګي څخه ترشپږم ټولګي پورې يې په درسي کتابونو باندې نوی نظر وکړ.

د دري ژبو زده کوونکو له پاره د پنځم ټولګي دغه موجوده کتاب چې اوس تدريس کيږي، د ښه تدريس په خاطرېې د ښوونکو له پاره دغه لارښود کتاب تأليف شوی دی چې ښوونکي ترې کار واخلي.

په دغه لارښود کتاب کې بېلابېلو موخو ته د زده کوونکو د رسيدو لپاره لارې چارې په ګوته شوي او د هر لوست د تدريس درسي ساعتونه هم پکې ښودل شوي او خبرې پرې شوي دي.

ښه به وي چې په دې لارښود کتاب کې د بېلا بېلو برخو تر روښانولو د مخه د معلم محوری او د فعالې زده کړې په هکله لنډې خبرې وکړو.

## د معلم محوری زده کړې

زموږ په هيواد کې پخوا د معلم محوری د زده کړې په چوکاټ کې زده کړې کيدله. د زده کړې ټول فعاليتونه به ښوونکي سرته رسول او زده کوونکو به يوازې د ليدونکو او او ريدونکو دنده سرته رسوله. په دغه ډول زده کړې کې به د فعاليتونو د سرته رسولو ټول فشار په ښوونکي و.

په ټولګي کې به ترې لږ شمير با استعداده زده کوونکوګټه پورته کوله، د تدريس په دغه ډول زده کړې کې زياتو زده کوونکو ځکه ګټه نشوه اخيستلای او له زده کړې څخه وروسته پاتي کيدل ځکه چې په فعاليتونوکې ورته برخه نه ورکول کيده. په دې ډول زده کړې کې زده کوونکو په پوهنيزه، مهارتي او ذهنيتي برخه کې کافي ونډه نه درلوده.

د ساينس او ټکنالوژی د زيات انکشاف او پرمختګ لپاره اړينه وه چې د ښوونې او روزنې پوهانو په درسي نصاب او د تدريس په اصولوکې داسې لارې چارې ولټولې چې زده کوونکي وکولای شي د زده کړې په پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي برخوکې فعاله برخه او په ژوند کې ترې ګټه واخلي.

## فعاله او مشارکتي زده کړې

کله چې د ښوونې او روزنې پوهان د معلم محوری د زده کړې په چوکاټ کې په نيمګړتياوو پوه او په دې فکرکې شول چې بايد داسې فعاله او مشارکتي زده کړې رامنځته شي چې په هغې کې ښوونکي د لارښود، څارونکي او فعا ل

ګډون کوونکي حیثیت ولري او زده کوونکي په خپله په لوست کې فعاله او عملي برخه ولري چې زده کوونکي وکړای شي د زده کړې په بهیر کې خپله پوهنیزه، مهارتي او ذهنیتي پوهه پیاوړې کړي.

په دې ډول زده کړې کې ښوونکي یوازې زده کوونکي څارې او له زده کوونکو سره په ستونزو کې مرسته کوي. زده کوونکي نور کار په خپله سرته رسوي، لارښوونو ته ژوره پاملرنه کوي او زده کوونکوته په ټولو فعالیتونو کې ونډه ورکول کیږي.

په دې ډول فعالې او مشارکتي زده کړې کې ښوونکي د هر لو ست موخه په پام کې نیسي او زده کوونکي نوموړې موخې ته د هغو لارو چارو پواسطه ځان رسوي، کومې چې په درسي او لارښود کتاب کې ورته لیکل شویدي. د درسي کتاب د هرلوست د موخو د زده کړې لپاره لازمه ده چې له بیلابیلو میتودونو څخه کار واخیستل شي چې د همدې لارښود کتاب د لوستونو په برخه کې ترې کار اخیستل شوی دی.

## د میتودونو ارزښت

په فعا له زده کړې کې د لوستونو د تدریس په برخه کې بیلا بیل میتودونه په ګوته شوي دي چې د درسي مضمونونو او شرایطوپه پام کې نیولوسره توپیر لري. موږ په دې لارښود کتاب کې هغو فعالیتونو ته اشاره کړې ده چې د ژبې په زده کړې کې مهم رول لري. موږ یوشمیر میتودونه په لنډ ډول لیکلي دي کیدای شي دکوم میتود عملي کول د زده کوونکو د شمیر د زیاتوالي له امله ستونزې ولري، ښوونکی کولای شي له هغه څخه تیرشي او کوم بل میتود څخه چې په نظریې ښه ښکاري ترې کار واخلي.

د ژبې د زده کړې ټول میتودونه په خپل ځای د ژبې د زده کړې په برخه کې د زده کوونکو لپاره ګټه لري، لاهم په دې برخه کې څیړنې روانې دي او د وخت په تیریدو سر ه په تعلیمي نصاب کې نوي بدلونونه رامنځته کیږي.

د ژبو په درسي کتابونو کې پوهان دې ټکي ته متوجې شول چې باید زده کوونکي د ژبې د زده کړې مهارتونه، لکه: غوږ نیول، لیدل، او ربډل، لوستل، لیکل او خبرې کول په داسې ډول سرته ورسوي چې ټول زده کوونکي پکې برخه واخلي. په مشارکتي زده کړې کې ارزښتونه دا دي چې زده کوونکي لیدلو، او ریدلو، غوږنیولو، لوست ویلو، لیکلو او خبروکولو ته هڅول کیږي او په دې برخه کې له یوکسیز، دوه کسیز، ډله ییز، د سوال او ځواب له میتودونو څخه کار واخلي.

د زده کړې په دې سیستم کې د زده کوونکو ذهن وده او انکشاف کوي، په ذهنیت کې یې بدلونونه را منځته کیږي، د درک او تفکر قوه یې لوړیږي، په دې زده کړې کې د زده کوونکو د زده کړې کچه لوړیږي او په راتلونکي وخت کې د خپل رسالت او مسوولیت د زده کړې او درک لپاره چمتو کیږي.

د لارښودکتاب په دې برخه کې په هغو برخوباندې رڼا اچوو چې له ښوونکي سره د فعالې زده کړې په پرمخ بیولو او له مؤلفینوسره د هم اهنګۍ او هم فکرۍ په برخه کې مرسته کوي او د ښوونکي لپاره په تدریس کې پوره لارښوونه کولای شي.

## پوهنیزه برخه

د دې برخې موخه داده چې زده کوونکي د لوست په معنا او مفهوم وپوهیږي او د بیلابیلو موضوعاتو په باره کې یې پوهه زیاته شي. ددې کتاب په ټولو لوستونوکې دپوهنیزې برخې د پیاوړ تیا په موخه جملې راو ړل شوي او زیات زور په تربیوي اړخ باندې زیات شوی دی. دیوې موضوع په باره کې پوهه ترلاسه کول پوهنیزه برخه ده چې دپوهې ترلاسه کول د زده کړې لومړنی شرط بلل کیږي، خوموږ زده کوونکو ته نه وایو چې کومه جمله پوهنیزه، مهارتي او کومه ذهنیتي ده. پدې باندې یوازې باید ښوونکی پوه شي او داسې فعالیتونه په زده کوونکو سرته ورسوي چې په دغو درې واړو برخو کې له زده کوونکو سره مرسته وکړي.

## مهارتي برخه

په زده کړه کې پوهیدل هغه وخت ارزښت او ګټه لري چې زده کوونکي په عملي ډول کار وکړي، لوستل وکړای شي، په مفهوم یې پوه شي، لوستل شوې جملې ولیکلای شي او په ورځني ژوند کې ورڅخه کار واخیستلی شي. په دې نوي درسي کتاب کې د لوستلو او لیکلو د زده کړې په موخه فعالیتونه ورکړل شوي دي. له دې امله د درسي کتاب په ټولو لوستونوکې د مهارت برخه په پام کې نیول شوي ده او دغه راز په فعالیتونوکې هم د پوهې او مهارت په برخه کې فعالیتونه راو ړل شوي دي.

## ذهنیتي برخه

له ذهنیتي برخې څخه هدف دادی چې د متن له لوستلو وروسته د زده کوونکو دانشي او مهارتي خوا پیاوړې شي او د زده کوونکو په ذهنیت، سلوك او کړو وړوکې بدلون راشي. هغه وخت د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راتلای شي چې زده کوونکي د لوست په مفهوم پوه او له لوست څخه اخیستنه وکړي، له هغه وروسته د زده کوونکو په کړو وړوکې مثبت بدلون رامنځته کیږي او په خپل ورځني ژوند کې ترې ګټه اخلي. د کتاب د لوستونو په ټولو برخو ترپوهنیزې او مهارتي برخې وروسته د ذهنیتي برخې دپیاوړتیا لپاره جملې راغلي دي او د زده کوونکو لپاره مستقیم او غیرمستقیم پیغامونه ورکړل شوي دي.

## د اوریدلو او غوږ نیولوبرخه

د ژبې په زده کړه کې اړینه ده چې د سم او ریدلو، سم غوږ نیولو، سم او بامفهومه لوستلو، لیکلو، سم لیدلو او خبروکولومهارتونه په پام کې ونیول شي. ځکه په دې ټولګي کې باید زده کوونکي متن داسې ولولي چې په مفهوم یې پوه شي. دکتاب په فعالیتونو کې د پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي برخو په راو ړلوسر بیره روزنیز پیامونه هم د زده کوونکو د پوهې دکچې د لوړولو لپاره راو ړل شوي دي. د ښوونې او روزنې پوهانو په تدریس کې بیلابیل میتودونه د فعا ل تدریس د اصولو پربنسټ رامنځته کړي دي، لکه: د لوستلو، لیکلو، سوال او ځواب، مقایسوي، خبرو اترو، مشق او تمرین، یو کسیز، دوه کسیزه فعالیتونه او نور.

د ښوونکو بری په دې کې دا دی چې په خپل مضمون باندې حاکم وي. د درسي کتاب او د ښوونکي د لارښودکتاب د فعالیتونو له مخې لوست پرمخ یوسي او له مولفینو سره هم فکره اوسي او د هرلوست په برخه کې ورته رڼا واچوي.

ځومره چې ښوونکی په ډېرو میتودونو پوه وي او ځومره چې د لوست په جریان کې له مرستندویه موادوڅخه کار واخلي، په هماغه اندازه زده کړې اغیزمنه او ګټوره کیږي او د لوست موخې سرته رسیږي.

په دې ټولوکې ښوونکي ته لازمه ده چې په ټولګي کې لارښوونکی او څارونکی واوسي، پــه ټــولګي کــې د زده کوونکوفردي توپیرونه، لیاقت او استعدادونه په پام کې ونیسي او ټولو زده کوونکوته په کې ونډه ورکړل شي. د میتودونو د سرته رسولو لپاره لازمه ده چې له مرستندوی توکو څخه کاروانیستل شي.څرنګه چې اکثره دري ژبي زده کوونکي په پښتوژبه باندې دخبرو کولو په برخه کې ستونزې لري، ددې لپاره موږ په درسي کتاب کې دمحاورې لپاره هم فعالیتونه راوړي دي، ښوونکی دې په ټولګي کې دوه دوه تنه زده کوونکي پورته کوي اوپه هغوی باندې دې محاوره سرته ورسوي اوداسې نورې محاورې که وخت وي پرهغوی باندې سرته ورسوي.

## د لارښودچوکاټ

په لارښود کتاب کې مو د ځانګې د مؤلفینو په یونظر سره د ښوونکي د لارښود لـه بیلابیلو چوکاټونوڅخه یوازې همدغه چوکاټ وټاکه. موږ یولوست د درسي ساعتونو له مخې په درو برخو ونه ویشلو. ددې کار لپاره مو یو شمیر دلایل درلودل:

۱– که چیرې مو یو لوست د ښوونکي لپاره په لارښود کتاب په درو برخو ویشلای وای. د ښوونکي د غیر حاضرئ په صورت کې یو لوست تیریده، په بله ورځ مجبور و چې د دویم ساعت لپاره ټاکل شوی لوست ورکړي. پـه دې ډول د لومړي ساعت لوست پاتي کیده په دویم ساعت کې یې دویمه برخه لوست ورکاو ه.

۲– دښوونکي د آزادئ او انکشاف مخه نیول کیده. د اصولوله مخې ښوونکی باید د آزادئ په چوکاټ کې خپله هم کار وکړي، خپل پلان ولري او یولوست په خپله خوښه د او نئ په درسي ساعتونوکې ورته تدریس کړي. ښوونکي باید ورځنی، هفته وار، میاشتنی او کلنی پلان د درسي کتاب له مخې جوړ کړي.

۳– که مو یولوست په درو برخو ویشلای وای د کتاب حجم ډېریده او ډیرې پیسې پرې لګیدلې.

۴– بله داچې که چیرې درسي ساعتونه کم او یا زیات شي، ښوونکی د دې واک لري چې یو لوست د او نئ په درسي ساعتونوکې ورته تدریس او پلان ورته جوړ کړي.

## د تدریس توکي

هغه مواد او نور مرستندوی توکي دي چې ښوونکی د هغو په واسطه هدف ته پرې ځان رسوي. زده کوونکو ته تدریس ګټور او په زړه پورې کوي، د تدریس وسیلې او مرستندویه، لکه: تخته، تباشیر، تخته پاک، د الفبا چارټ، انځورونه، د کلمو او جملو لیکلي کارتونه، کمپیوتر، دپروجکتور پواسطه د هنري او تعلیمي فلمومو ښودل، پروجکتور او نور د تدریس ښې وسیلې بلل کیږي. ښوونکي کولای شي په خپله هم له محیطي موادو څخه دتدریس توکي ورته جوړ کړي.

## ارزونه

ښوونکي ته لازمه د ه چې د لوست په پای کې د خپل لوست د ارزونې لپاره چې زده کوونکوځومره زده کړه کړې ده، پوښتنې وکړي. د ارزونې ګټه داده چې ښوونکی د ارزونې په واسطه هم زده کوونکي ارزوي او هم ځان

ارزوي.که چیرې زده کوونکي پوه شوي نه وي، ښوونکی کولای شي چې لوست په لنډه توګه یو ځل ورته تکرار کړي او کولای شي چې د لوست میتود بدل کړي.

د هر متن د پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي برخې له پوهیدو وروسته د درس د تحکیم، ټینګښت او پوهېدو لپاره ارزونه د درسي پروګرام یو بنسټیز رکن دی چې ښوونکی یې باید په پام کې ولري.

## کورنۍ دنده

ښوونکی دې زده کوونکوته مناسبه کورنۍدنده ورکړي چې زده کوونکي یې په کورکې سرته ورسوي. د کورنۍدندې کتنه ډېره مهمه او ارزښتناکه ده. د کورنۍ دندې په سرته رسولوسره زده کوونکي خپل مسؤولیت احساسوي، له زده کړې سره عادت کیږي، د زده کړې درجه یې لوړیږي او له زده کړې څخه لري نه پاتي کیږي. ښه ده چې زده کوونکوته د هغوی دپوهې او پیاو ړتیا سره سم بیلا بیلې کورنۍ دندې ورکړل شي او د نورو مضمونونو کورنۍ دندې هم په پام کې ونیسي.

په پخوانیو درسي کتابونو کې یوازې پوهنیزې خواته ډېره پاملرنه شوي وه، خو د پنځم ټولګي په دې نوي درسي کتاب کې د شرایطو او مفرداتو په پام کې نیولو سره د بیا کتنې کار پیل شو او د هرلوست په متن کې پوهنیزه، مهارتي او ذهنیتي برخې ورزیاتې شوي او دغه راز د هرلوست لپاره یو شمیر فعالیتونه چې په هغو کې دانشي، مهارتي او ذهنیتي برخې په پام کې نیول شوي، لیکل شوي دي.

په لاربښود کتاب کې د ټولو لوستونو لپاره یو عمومي چوکاټ تیارشوی او ډک شوی دی. چوکاټ داسې جوړ شوی دی چې لومړی د چوکاټ په سرکې د لوست شمیره او د لوست د تدریس وخت لیکل شوی دی.

هر لوست باید د او نۍ په درسي ساعتونوکې زده کوونکو ته تدریس شي.

موږ ښوونکي نه قیدوو. ښوونکي باید یو لوست د او نۍ د درسي ساعتونو په پام کې نیولو سره لوست په درو برخو وویشي. له چوکاټ سره سم دې په هر درسي ساعت کې لومړی د درسي کتاب له فعالیتونو څخه کار واخلي. که د کتاب کوم فعالیت پاتې شو، بیا دې پاتې فعالیتونه د لاربښود کتاب له فعالیتونو سره د نورو دوو درسي ساعتونو لپاره په پام کې ونیسي. په زده کوونکو دې عملي کړي او که وخت و ښوونکي کولای شي د همد غه ډول فعالیتونو په ډول نور فعالیتونه په زده کوونکو باندې سرته ورسوي. په لومړي درسي ساعت کې د کتاب له مخې دې کورنۍ دنده ورکړي او په دویم درسي ساعت کې دې دلاربښود له مخې کورنۍ دنده ورته وسپاري او په دریم درسي ساعت کې دې په خپله خوښه کورنۍ دنده ورڅخه وغواړي. د درسي کتابونو د تألیف په برخه کې په درسي کتابونو بیا کتنه د معارف له ستراتیژۍ سره سمه شوي ده چې زده کوونکي د لومړی دورې تر فارغیدو وروسته په لوستلو او لیکلو وپوهیږي. له دې امله لازمه ده چې ښوونکي زده کوونکو ته د دغه لاربښود کتاب له مخې د زده کړې مهارتونه او فعالیتونه په پام کې ونیسي او زده کوونکي په زده کړې کې جسمي او ذهني فعال ګډون وکړي.

د پنځم ټولګي درسي کتاب چې ستا سو په واک کې دی، تر بیاکتنې وروسته یې خپل قانوني پړاو ونه وهلي، چاپ اوستاسوپه واک کې درکړل شوی دی.

-د پنځم ټولګي درسي کتاب د فزیکي جوړښت له مخې ۳ برخې لري: د کتاب مقدماتي برخه
- دمتن برخه
-وروستۍ برخه

## د کتاب مقدماتي برخه

په لومړۍ برخه کې د کتاب مقدماتي برخه راغلي ده چې په هغې کې د لاربښود نوم، د مؤلفینونومونه، د ژبې د ایډیټور نوم، د دیني، سیاسي او کلتوري کمیټې نومونه لیکل شوي. (د هرې برخې مسؤول په خپله برخه کې کتاب لیدلی او د هغو له خوا تیروتنې په ګوته شوي اوسمې شوي دي). تر هغه وروسته بسم الله، ملي سرود، د پوهنې د وزیر پیغام او د کتاب لیک لړ راغلی دی.

- د کتاب په دویمه برخه کې د درسي کتاب متن راغلی دی.
- په وروستی برخه کې د پوهنې ترانه راغلي ده.

## درنو ښوونکو!

په ټول تعلیمي کال کې له رخصتۍ پرته ۲۸ درسي او نۍ په پام کې نیول شوي دي. په هره او نۍ کې په ابتدایه ټولګیوکې د دري ژبو زده کو ونکو لپاره په او نی کې ۳ درسي ساعتونه د اوس لپاره په پام کې نیول شوي دي چې ټول۸۴ ساعتونه کیږي. موږ د ټول تعلیمي کال د ۲۸ او نیو په پام کې نیولو سره په درسي کتاب کې ټول ۲۸ لوستونه راو ړي دي چې یو لوست په ۳ درسي ساعتونو کې تدریس کیږي او ټول ۸۴ ساعتونه کیږي.

باید یادونه وکړو چې موږ د درسي کتاب په لوستونو کې لومړی د لوست شمیره راو ړي ده. تر هغه وروسته د لوست سرلیک او بیا ترې لاندې د اصولو له مخې تصویرونه او عکسونه ځکه راو ړي دي چې هر عکس او انځور د متن یوه برخه بلل کیږي.

له هر عکس او یا انځور لاندې د لوست موخه راغلي ده چې د همدغې موخې په اساس متن برابر شوی دی او د همدغې موخې په اساس ورته فعالیتونه عیار شوي چې ښوونکي یې په زده کوونکو باندې سرته ورسوي او خپله ورسره مرسته وکړي. تردې وروسته هڅوونکې پوښتنې راغلي دي. له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې د هغوذهن لوست ته را وګرزي. کله کله کولای شي چې د انځور په هکله هم له زده کوونکو څخه انګیزوي پوښتنه وکړي چې په عکس او یا انځورکې څه ویني؟

وروسته د لوست متن راغلی دی. په متن کې دانشي، مهارتي او ذهنیتي خواو ې په پام کې نیول شوي دي. ترمتن وروسته فعالیتونه راغلي دي، ښوونکي کولای شي لومړی د درسي کتاب فعالیتونه او بیا وروسته د همدې لاربښود کتاب فعالیتونه په زده کوونکوباندې کاروکړي.

کله چې ښوونکی ټولګي ته ور شي، لومړی به مقدماتي فعالیت سرته ورسوي یعنې ترهر څه د مخه باید سلام واچوي چې په زده کوونکي کې تربیتي روحیه پیاو ړي شي. بیا به د هغوی د تیرې ورځې د غیر حاضرۍ پوښتنه وکړي، حاضري به واخلي. د تیر لوست په هکله به پوښتنه وکړي او بیا به کورنۍ دنده وګوري. کورنۍ دنده داسې نه چې یوازې د یو څوکسو بلکې د ټولو زده کوونکوکورنۍ دنده به ګوري، که وخت نه و، ښوونکی کولای شي چې کتابچې ترې را ټولې او په وزګار وخت کې یې په دقیق ډول وګوري او هرزده کوونکي ته په کتابچه کې دتیروتنو دحل لاربښوونه ورته وکړي. په مقدماتي برخه باندې باید له ۵ دقیقوزیات وخت ونه لګوي کولای شي دشمیر دزیاتوالي لامله یوازې ناسوب زده کوونکي یادداشت کړي اوکه دکورنۍ دندې لیدلوته ډیروخت په کار و، کولای شي چې له ځان سره یې یوسي اوپه کورکې یې وګوري.

باید یادونه وکړو چې موږ د درسي کتاب په لوستونو کې لومړی د لوست شمیره راو ړي ده. تر هغه وروسته د لوست سرلیك او بیا ترې لاندې د اصولو له مخې تصویرونه او عکسونه څکه راو ړي دي چې هر عکس او انځور د متن یوه برخه بلل کیږي اوله متن سره ارتباط لري.

له هر عکس او یا انځور لاندې د لوست موخه راغلي ده چې د همدغې موخې په اساس متن برابر شوی دی او د همدغې موخې په اساس ورته فعالیتونه عیار شوي چې ښوونکي یې په زده کوونکو بانـدې سرته ورسوي او خپله ورسره مرسته وکړي. تردې وروسته هڅوونکې پوښتنې راغلي دي. له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې د هغوذهن لوست ته را وگرزي. کله کله کولای شي چې د انځور په هکله هم له زده کوونکو څخه انگیزوي پوښتنه وکړي چې په عکس او یا انځورکې څه ویني؟

بیا به د لوست سرلیك پرتختې ولیکي او د لوست د سرلیك یا د تصوریر په هکله به له زده کوونکو څخه انگیزوي پوښتنې وکړی. که لازمه وه دسرلیك په هکله زده کوونکوته پوره معلومات ورکړئ وروسته بـه لوست پیل کړي. پـه لارښود کتاب کې د لوست ورکولو لپاره د هر لوست لپاره چوکاټ ورکړل شوی. له چوکاټ سره سم به وړاندې ولاړشي.
درنوښوونکو!

که چیرې ستاسوپه ټولگي کې داسې زده کوونکي وي چې د کتاب متن پـه سـمه توگـه لوستلی شـي، نـو څـوزده کوونکي دې د لوست متن ورته ولولي، تاسوهم ورته متوجې اوسئ او مرسته ورسره وکړئ او ټول زده کوونکي ورتـه متوجې کړئ او که چیرې مو زده کوونکي کمزوري وي تاسومتن ورته په مناسب او از ولولئ او بیا دې نورزده کوو نکـې په وارسره ووایي.

که په متن کې ستاسو به نظر نوي لغتونه راغلي وي هغه پرتختې ولیکئ او څوځلې یې ورتـه تکـرار کـړ ئ چې زده کوونکي دهغو له لوستلوسره بلد شي.موږ کوښښ کړی دی چې په متن کې داسې کلمې راو ړو چې زده کوونکي په خپل محیط کې ورسره اشنا وي، که چیرې په کوم لوست کې داسې لغت راغلی وي چې زده کوونکي دهغه په معنا پوه نه شي، تاسو نوموړی لغت په داسې جملوکې ورته ووایئ چې له جملې څخه دلغت مانا وپیژني.

که چیرې ستاسو په زده کوونکوکې داسې کسان وي چې دهغوی دسترگودید کم وي اویامعلول زده کوونکي وي اویا دهغوی ونې ټیټې وي اویا کوچني وي، داسې زده کوونکي په مخکې کتارکې کینوئ.

درنو ښوونکو! په ټولگې ترمقدماتي فعالیتونو وروسته لومړی دلوست دسرلیك په هکله ورته رڼا واچوئ اوبیا لوست ورته ولولئ .ستاسو ترلوستلووروسته څوتنو پوهو زده کوونکو متن ولـولئ. دهرلوسـت پـه پـای کـې پـه زده کوونکوبانـدې دمحاورې لپاره وخت ورکړې چې له یوبل څخه پوښتنې وکړي اوځوابونه ورکړي.

له زده کوونکوڅخه په هرلوست کې مستقیمې او ادراکي پوښتنې وکړئ. مستقیمې په دې معنا چې دهغوځـواب پـه لوست کې موجود وي، خو د ادراکي لپاره ځواب په متن کې نه وي اوپه ولې سره پوښتنه کیږي.دبیلگې په توگه:

–ولې زده کړې کوو؟ که یووالی ونه لرو څه به وشي؟ همداسې نورې پوښتنې چې په متن کې نه وي، خولـه متن سره په ارتباط کې وي.

## درنوښوونکو!

تاسوباید زده کو ونکوته د هرلوست د سرلیك په هکله رڼا واچوئ چې هغوی د لوست پـه هکلـه معلومات ترلاسـه کړي.

دغه راز زده کوونکو ته تل سپارښتنه وکړئ چې له ښوونځي څخه سیده خپلوکورونو ته ولاړشي، په لاروکې مشرانوته او په کورکې مور پلار او مشرانوته سلام واچوي. په کورونوکې خپل مور او پلار او دکورنۍ غړو ته درناوی ولري او خپلې کورنۍ دندې سرته ورسوي، تفریح اوسپورت هم وکړي خو ورسره له کورنۍ سره مرسته هم وکړي.

ښوونځي ته په تګ راتګ کې د چا میوو او فصلونو ته زیان ونه رسوي. په سرکونو باندې پام وکړي چې موټر یې ونه وهي له سرکونوڅخه د تیریدلو په باره کې ورته لارښوونه وکړئ. چې کله له سرک څخه تیریږی، ښي او کیڼې خواته ښه وګوري چې موټر نه وي بیا په ارامه تیرشي په سرک باندې منډه ونه کړي چې چلوونکي او تریږي. که په ښارونو کې وي او هلته ترافیک پولیس ولاړ وي له هغه دې مرسته وغواړي چې له سرک څخه یې تیرکړي او که ترافیک پولیس نه وي او څلور لارې وي او هلته زګنال څراغونه موجود وي، ورته ووایئ کله چې اشاره شنه شوه بیا په ارامه تیرشئ او کله چې اشاره سره وه او یا سره شوه د سرک په غاړه ودریږئ کله چې اشاره شنه شوه بیا تیر شئ.

دزلزلو په وخت کې که زلزله ورو وه، باید په ارامه توګه په زینو باندې کښته شي، ټیله او منډې ونه کړي، ځکه په منډو کې لویږی او نور زده کوونکي پرې د پاسه تیریږي بیا ژوبلیږي او که د زلزلې حرکت تیز و، باید دې د خپلو میزونو لاندې پټ شي او یا دې د زینو لاندې شي چې سرونه یې له ضربې څخه وساتل شي.

زده کوونکي په دې پوه کړئ که چیرې تیز باران او یا ږلۍ پیل کیږي، باید په خوړونوکې ولاړ نشي، ځکه د سیلاب دراتلو امکان وي نو کوشش دې وکړي ترڅویوکور، جومات او یاهم کوم بل امنترین ځای ته ځانونه ورسوي. کله چې باران او یا ږلۍ ودریده، بیا دې خپلو کورونو ته ولاړشي، تاسې یې په زیانونو پوه کړئ.

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې خپلومشرانوته ووایي چې په ټیټوځایونو یا هغوځایونوکې چې دزیات باران او ږلۍ په وخت کې دسیلابونود را وتلو امکان وي خپل کورونه جوړ نه کړي چې مادي او معنوي زیانونه ورته رسیږي.

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې په تګ راتګ کې ونې مه ماتوئ. کوښښ وکړئ چې دخپل کورشاو خوا پاکه اوسمسوره وساتئ، ځکه چې په پاک چاپیریال کې روغتیا موجود وي او خپله شاو خوا مو پرې ښکلې وي.

زده کوونکوته لارښوونه وکړئ چې خپل ځان، کالي او نوکان پاک وساتي ځکه چې په او ږدو نوکانو او خیرنو جامو کې مکروبونه ځای نیسي او انسان ناروغه کیږي.که امکان ولري تل خپلو زده کوونکو ته په همدې روزنیزو برخو په باره کې تل لارښوونه وکړئ ځکه چې ستاسولارښوونې پر زده کوونکو باندې ښې اغیزې لري.

ستاسو د بري په هیله

# لومړی لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **قران کریم** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به د دې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به قرآن کريم وپيژندلای شي.<br>- قرآن کريم به تلاوت کړای شي.<br>- د قرآن کريم له تلاوت سره به مينه پيدا کړای شي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسیز، ډله ییز فعالیتونه او د سوال او ځواب فعالیتونه |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | - کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته او تخته پاک |
| **مقدماتي فعالیتونه** | - ښاغلئ ښوونکی! ټولګي ته په ننوتلو سره سلام واچوئ، له زده کوونکو سره لنډه ستړې مشي وکړئ. د حال احوال پوښتنه دې وکړئ. په ټولګي کې زده کوونکې تنظيم او بيا حاضري واخلئ. دزده کوونکو پاکوالي ته پاملرنه وکړئ. |
| **انګېزوي پوښتنې** | له زده کوونکوڅخه د هڅولو په هکله څو پو ښتنې وکړئ، لکه:<br>- قرآن کريم دچا کتاب دی؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعاليتونو وروسته د اونۍ په دې لومړي ساعت کې لومړی زده کوونکو ته خپل نوم ور وپيژنئ او پرتخته يې وليکئ او بيا به زده کوونکي خپل نومونه ووايي چې يوله بل سره وپيژني. له دې وروسته د نوي کال د ښو هيلو او زده کړې د اړتيا او دغه راز د قرآن کريم دتلاوت او سم لوستلو په هکله ځينې تشويقوونکي خبرې وکړئ.<br>- زده کوونکوته د قرآن کريم دفضليت او د تلاوت د ثواب په هکله خبرې وکړئ. بيا ورته نوی لوست ولولئ. نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي.<br>- يو زده کوونکی پورته کړئ. متن دې ولولي. تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- څو زده کوونکي پورته کړئ، د لوست د مفهوم په هکله دې خبرې وکړي او نوردې ورته غوږ ونيسي. تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- له زده کوونکوپوښتنه وکړئ چې موږ ولې د قرآن کريم تلاوت کوو.<br>- څوزده کوونکي پورته کړئ چې د نورو ټولګيوالو نومونه ووايي.<br>- که وخت و کولای شئ، خپله يو ياڅو فعاليتونه په زده کوونکو باندې سرته ورسوئ.<br>- هر زده کوونکی دې دخپل کلي نوم واخلي اودخپل پلارنوم دې ووايي.<br>- زده کوونکو ته دښوونځي مقررات وښيي . |
| **د لوست ارزونه** | څوک به ننني لوست ووايي؟ |
| **کورنۍ دنده** | هر زده کوونکی دې په کورکې د قرآن کريم په باره کې څوکرښې وليکي. |
| **اضافي معلومات** | قرآن کريم د خدایﷻ سپڅلي کتاب دی چې په حضرت محمدﷺ باندې نازل شوی دی. داکتاب |

په ۲۳ کلونو کې په وار وار سره نازل شو ی دی. په دې کتاب کې هیڅوک لاسوهنه نشي کولای او د قیامت تر ورځې پورې به په همدې ډول امانت پا تي شي او د قاريانو په زړونو کې به هم خوندې وي.

د قرآن کريم يوه قلمي نسخه چې په لومړی هجري پیړۍ کې په کوفي لیک لیکل شوي ده، د ترکیې په یوه ننداراتون کې خوندي ده، نوموړې قلمي نسخه له اوسنیو نسخو سره توپیر نه لري. قرآن کريم ۳۰ سپارې یا پارې لري.

د حضرت محمدﷺ د پیغمبر کیدو او د قرآن کریم په باره کې تر اسلام د مخه په نورو الهي د ینونو، لکه: په تورات او انجیل کې هم يو شمير خصوصيات او نښې راغلي وې.

قرآن کريم په داسې وخت کې په حضرت پیغمبرﷺ باندې نازل شو چې وحشت او زور زياتی ډیر و. حضرت محمدﷺ د قرآن له احکامو سره سم د انسانانو ترمنځ د عدل او عدالت د رامنځته کولو او انسانانو ته د سمې لارې لارښوونې کړې دي او د اسلام مبارک دين يې د خلکو تر منځ خپور کړ چې تر نن پورې په میلیونو مسلمانان د همدغه دين په لاره برابر روان دي.

قرآن کريم زموږ مسلمانانو يو داسې الهي کتاب دی چې په نړۍ کې دژوند کولو ټولې لارښوونې په کې راغلي دي او موږ مسلمانانوته لازمه ده چې ددغه قانون له لارښوونو او اوامرو سره سم ځانونه عيار کړو اوله اسلامي طريقې سره سم ژوند وکړو چې په دې دنيا اوهغې دنيا کې نیکمرغه اوسو او د قيامت په ورځ دلوی خدایﷻ په مخ کې بي ځوابه پاتې نشو.

قرآن کريم د لارښوونو په رڼا کې پوهيدلي يو چې خدایﷻ انسانان اشرف المخلوقات ، دکورنيو ، قبيلو او ډلو په ډول پيدا کړي دي، ددې لپاره چې له يوبل سره وپيژني اودغه راز ديوې سالمې ټولنې په جوړولو کې له يوبل سره مرسته وکړي ، نه دحيواناتوپه څیر چې یوبل نه پيژني او د عقل له نعمت څخه بي برخې شوي دي. له دې امله ويلای شو چې قرآن کريم موږ ته د انساني يووالي لپاره بلنه راکړي ده .

دغه راز د قرآن کريم په يومبارک ايت کې راغلي دي چې انسانان له رنګ، نژاد او جنسيت په پام کې نيولو څخه پرته مساوي حقوق لري اوپه نسب کې سره ورونه دي اوپه اسلام کې يې حقوق ساتل شوي دي.

قرآن کريم ټول بشري اختلافات او توپيرونه له منځه وړي دي اودپای ټکی يې ورته ايښی دی. داسلام په مبارک دين کې دماشومانوحقوق خوندي شوي ان چې ترزيږيدو دمخه هم دماشوم ژوند ته درناوی شوی دی. دژوند داسې خوا نشته چې دهغې په هکله په قرآن کريم اوحديثو کې لارښونه شوي نه وي، بلکې دژوندانه ټولې خواوې پکې روښانه شوي دي اواخروي ژوندانه لپاره په قرآن کې لارښوونې راغلي دي او موږ مسلمان هغه لارښوونې عملي يې کړو.

# دویم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نیو درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **حضرت عمر فاروق** ﷺ |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کوونکي به د دې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به حضرت عمر ﷺ وپیژندلای شي.<br>- متن به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- د حضرت عمر ﷺ له کړنو سره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز، ډله ییز، دسوال او ځواب فعالیتونه<br>(ښاغلی ښوونکی! په وروسته ټولو لوستونو کې دتدریس له پورتنیو لارو څخه کارواخلئ.) |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | - کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک، کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ اوبیا لوست پیل کړئ. |
| | ښاغلئ ښوونکی! دهر لوست ترپیل دمخه څوانگیزوي پوښتنه وکړئ، لکه:<br>- څوک به وواییي چې حضرت عمر ﷺ څوک و؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - دحضرت عمر ﷺ په هکله زده کوونکو ته خبرې وکړئ اوبیا ورته لوست په داسې اواز ولولئ چې ټول زده کوونکی یې واورې.<br>په یو زده کوونکي د لوست متن وواییئ او خپله ورسره مرسته وکړئ.<br>- څوزده کوونکي دې دمتن یویو پاراگراف ولولي، تاسو ورته لارښوونه وکړئ.<br>- زده کوونکي دې په خپله خوښه دکتاب له لوست څخه څو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي او څوکسه دې په ټولگي کې وواییي.<br>- یو زده کوونکی د تختې مخې ته راو غواړئ. بل زده کوونکی دې ورته دکتاب د لوست یوجمله وواییي او هغه دې پرتختې ولیکي، نور زده کوونکي دې دهغه تیروتنه ورته ور اصلاح کړي.<br>- په څوزده کوونکو محاوره وکړئ. له یوبل څخه دې اسانه پوښتنې وکړي، تاسو کلمات ورته اصلاح کړئ.<br>- ښوونکی دې له ځانه که وخت و، فعالیت ورکړي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکوڅخه د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- حضرت عمر ﷺ کوم مهم کار کړی دی؟ نوم یې واخلئ. |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکی دې په کورکې د حضرت عمر ﷺ په هکله څوکرښې په خپلو کتابچوکې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې راو ړي. |

| | |
|---|---|
| **اضافي معلومات** | حضرت عمرؓ دخطاب زوی او د مسلمانانو دویم خلیفه دی. نوموړی په اسلامي نړۍ کې په عدل او عدالت کې ساری نه لري، نوموړي د خپلې کورنۍ د غړیو او نورو عوامو خلکو ترمنځ د عدالت په کولو کې توپیر نه کاو ه، که چا به جرم وکړ، حتما به یې وریاندې اسلامي قانون عملي کاوه.<br>نوموړي ته فاروق لقب او په ژوند کې د جنت زیری ورکړل شوی و. عمر فاروق په اسلامي نړۍ کې لومړنی امیر و چې ستره امپراطورۍ یې دعدل او عدالت په اساس جوړه کړه. د حج په مراسمو کې به یې خپل چارواکي راغوښتل او د مسلمانانو پوښتنه به یې ورڅخه کوله. دخلکو له ستونزو او غوښتنو به یې ځان خبراو ه. دخپل امارت په وخت کې یې بې وزلو خلکو ته مالیه وبښله. د انصارو او کلیساګانو دنه رنګولو ترڅنګ یې د هغوی د ناموس اوسراو مال دساتلو فرمان هم صادرکړ. دخپلو پوځي کسانو لپاره یې عسکري قشلې جوړې کړي. پوځیانو ته یې رخصتۍ او تنخواګانې وټاکلې. دخپلو پوځیانو د قشلو لپاره یې دوخت طبیبان موظف کړل. سلاکوټونه یې جوړاو مالي چارې یې منظمې کړې. د بیت المال بنسټ یې کیښود. د زکات راټولو یې جبرې کړل. د سرو زرو اوسپینو زرو سکه یې رامنځته کړه او په هغې کې خپل نوم او بسم الله ولیکله.<br>اوس چې په نړۍ کې د حضرت عمرؓ په هکله څیړنې کیږي، د هغه سپیڅلتیا او فکري لوړوالي تاییدوي ان چې لویدیز پوهان هم د هغه په باره لیکي چې نوموړی داسلام په اصولو ټینګ ولاړ او په انصا ف کولو کې یې ساری نه درلود. سره له دې نوموړي عدل او عدالت کاو ه، خو بې کبره او خاکساره و. نوموړې داسې عدل او امن رامنځته کړ چې ساتونکو ته یې نوره اړتیا نه لیدل کیده.<br>د لسو کلونو او ٦ میاشتوخلافت وروسته د هجرت په درویشتم کال د لوی اختر په شپارسمه د چارشنبې په ورځ دیو ا تش پرست له خوا چې په ابولؤلؤ سره مشهور و، په توره ټپي شو. کله چې نوموړی ټپی شو، سمدلاسه یې یو ه ٦ کسیزه شورا جوړه کړه چې راتلونکي مشر وټاکي چې په واک تشه پیدا نه شي، نو هماغه و چې تر ده وروسته حضرت عثمان ؓ خلیفه شو. د حضرت ابوبکر صدیقؓ په څنګ کې خاو روته وسپارل شو.<br>حضرت عمرؓ داسې خلیفه و چې دشپې به هم ګرځیده اودخپل رعیت د حال او احوال پوښتنه به یې کوله اوپه خپلوټولو کارونو کې به یې دعدالت په اساس پریکړې کولې له دې امله دنوموړي اسلامي حکومت په نړۍ کې ساری نه لري. |

## دريم لوست

## د تدريس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د او نیم درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | ښوونځی |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>پوهنيزې<br>مهارتي<br>ذهنيتي | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به ښوونځي وپيژني.<br>- د لوست متن به ولوستلای او وليکلای شي.<br>- له ښوونځي سره به يې مينه پيدا شي. |
| د تدريس لارې | يوکسيز، دوه کسيز، ډله ييز او د سوال او ځواب لارې |
| د تدريس مرستندوی توکي | - کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته او تخته پاک |
| مقدماتي فعاليتونه | - مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| انگېزوي پوښتنې | د لوست په هکله انگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په فکرپه ښوونځي کې څه شی زده کيږي؟ |
| د ښوونکي فعاليتونه | - له مقدماتي فعاليتونووروسته زده کوونکو ته دښوونځي په هکله خبرې وکړئ اوبيا دنوي لوست سرليک پرتختې ورته وليکئ اوبيا يوځل لوست ورته ولولئ.<br>- بيا په زده کوونکو متن ولولئ او خپله ورسره مرسته وکړئ.<br>- يو زده کوونکی دې بل ته د کتاب له مخې يوه جمله ووايي او هغه دې پرتختې وليکي دريم زده کوونکی دې دهغه تيروتنه ونيسي. تاسو ورته لارښوونه وکړئ.<br>- زده کوونکی دې د لوست متن ولولي. بيا دې له متن څخه په خپله خوښه يوجمله وليکي په ټولگي کې دې وو ايي.<br>- له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې تاسو ولې ښوونځي ته راځئ. که چا سم ځواب ورکړ بيا له نورو زده کوونکوڅخه دهغه زده کوونکي دځواب تاييد واخلئ.<br>- په څوزده کوونکي متن ولولئ، بيا دې په خپلوکتابچوکې له متن څخه څوکلمې په خپله خوښه سره وټاکي او په جملو کې دې وکاروي، څوتنه دې په ټولگي کې نورو ملگروته په مناسب اواز ولولي.<br>- يوزده کوونکي دې دافغانستان دبيرغ رنگونه پرتختې وليکي او بل زده کوونکی دې په جمله کې وکاروي. |
| د لوست ارزونه | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله څو پوښتنې وکړي، لکه:<br>- زده کوونکي په ښوونځي کې څه شی زده کوي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په کورکې د ښوونځي په هکله څوکرښې وليکي. |

**اضافي معلومات**

پوهولو راپوهولو ته زده کړې وايي. يا په بل عبارت له يو ذهن څخه بل ذهن ته د مفاهيمو ليږدول چې دمخاطب په سلوک مثبت بدلون رامنځته کړي، دې ته زده کړې وايي.

يا دا چې دليدلو، عمل، تجربو، کتلو او اوريدلو په واسطه چې د انسان په ذهن اوسلوک کې مثبت بدلون رامنځته شي، دې زده کړې وايي، نو پدې اساس ويلای شو چې زده کړې له زيږيدو څخه تر مرگ پورې دوام لري.

يوه ډول زده کړې داده چې يوانسان په خپله کار کوي، مطالعه کوي، او ري، گوري له خپلو تجربو او دنورو له تجربو څخه يو څه ترلاسه کوي، دې ته خصوصي زده کړې وايي. يوډول زده کړې د مدرسو له لارې دوديزه زده کړې ده او بل ډول دښوونځيو له لارې رسمي زده کړې ده.

ښوونځي يو داسې بنسټ دی چې خپل خاص قوانين لري او زده کوونکي دخپلو ځانگړيو قوانينوپه چوکاټ کې ښوونځي ته ورځي او هلته دخپل عمر، استعداد او ددرسي ساعتونو په چو کاټ کې زده کړې کوي.

په ښوونځي کې هم تدريس کيږي او هم په کې روزنيزه خواباندې فشار اچول کيږي. ښوونځی په دولتي چوکاټ کې يو داسې منظم ځای دی چې هلته د زده کړې بهير په بيلا بيلو مرحلو کې تر سره کيږي چې په خپل هيواد کې ورته ابتداييه، متو سطه او ليسه وايو چې ابتدايه ٦ کاله، متوسطه درې کاله او ليسه هم ٣ کاله ده.

که څه هم زده کړې له ښوونځي بهر هم کيږي، خو ښوونځی دزده کړې لپاره يو داسې منظم ځای دی چې هلته هم دښوونځي دښوونکو او هم دښوونځي دزده کوونکو لپاره ځانگړي قوانين وضع شوي وي او دځانگړو قوانينو په درشل کې زده کړې مخته ځي. په زده کړې کې درسي کتابونه افقي او عمودي اړيکي لري او دتدريس په وختونو د زده کوونکو ارزونه کيږي او د هر ټولگي لپاره د ځانگړو معيارونو په چوکاټ کې درسي کتابونه ورکول کيږي. ښوونځي په ٢ډوله دي:

دولتي ښوونځي او خصوصي ښوونځي

کله چې په يوه هيواد کې دولتي ښوونځي ټول زده کوونکي جذبولای نشي، نو خصوصي ښوونځيو ته اجازه ورکوي.

زموږ په هيواد کې د خصوصي ښوونځيو درسي کتابونه دمعارف وزارت ترڅارنې لاندې تدريس کيږي او هماغه درسي کتابونه دي چې په دولتي ښوونځيو کې تدريس کيږي.

## څلورم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نیم درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **کتاب** |
| **د زده کړې موخې:** **پوهنيزې** **مهارتي** **ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به کتاب ارزښت وپيژني.<br>- زده کوونکي به متن ولوستلای او و ليکلای شي.<br>- له کتاب سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انګېزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څو انګيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په اند په نعت کې د چا ستاينه کيږي؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته دکتاب دارزښت په هکله زده کوونکوته خبرې وکړئ اودلوست سرليک پرتختې ورته وليکئ.<br>-د لوست متن ورته ولولئ او بيا يې په زده کوونکو باندې ولولئ او په لوستلو کې ورسره مرسته وکړئ. نوردې ورته غوږ ونيسي.<br>- څوزده کوونکي دې د لوست په مفهوم باندې خبرې وکړي.<br>- په زده‌کوونکو د لوست متن په چوپه خوله ولولئ. له لوستلو وروسته دې يو زده‌کوونکی د ټولګي مخې ته ورشي، لوست دې د ټولګي په مخ کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- يو زده‌کوونکی دې پورته شي، له کتاب پرته دې د کتاب په هکله خبرې وکړي او نور زده‌کوونکي دې ورته غوږ ونيسي.<br>- له څوزده کوونکوپوښتنه وکړئ چې دکتاب لوستل څه ګټې لري؟<br>- که وخت و، يوه مستقيمه پوښتنه له زده‌کوونکوڅخه وکړئ.<br>- زده کوونکو ته لارښونه وکړئ چې له ښوونځي څخه سيده خپلوکورونو ته ولاړشي .<br>- زده کوونکو ته ووايي چې کله کورونو ته ولاړشي له خپل مور اوپلار سره په کارونوکې مرسته وکړي. |
| **د لوست ارزونه** | د لوست د زده کړې په هکله له څو تنو څخه پوښتنې وکړي، لکه:<br>- کتاب څه ارزښت لري؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې دښه ښوونکي په هکله څوکرښې وليکي. |
| **اضافي معلومات** | کتاب هغه ټولګه ده چې په هغه کې دژوندانه په بيلابيلو برخو کې مطالب ليکل شوي وي او په |

| | |
|---|---|
| لوستلوسره یې دانسانه په سلوک کې بلونونونه رامنځته کیږي.<br>هغه ځو ک چې له کتا ب سره مینه لري او مطالعه کوي یې، دهغه په شخصیت کې بدلونونه رامنځته کیږي او دژوندانه په سختولارو کې ځانته لاره بیدا کوي.<br>کتاب دانسان ښه ملګرى دى، خو پدې شرط چې داسې ښه کتاب و ي چې له مطالعه کوونکي سره مرسته وکړي او په ګټه یې تمام شي.<br>لکه څنګه چې کتاب مهم دى، په هماغه اندازه د کتاب ساتل مهم دي. د کتاب په لیکلو او چاپولو باندې ډیر کار کیږي او ډیرې پیسې پرې مصرف کیږي، نو له دې امله په دولتي او شخصي ډول د کتابونو دساتلو لپاره کتابتونونه جوړیږي او په هغوکې کتابونو ساتل کیږي.<br>موږ په هیواد کې په دولتي کچه دکلتور وزارت په چوکاټ کې دعامه کتابتونونو ریاست لرو چې په چوکاټ کې یې په مرکز او ولایتونو کې کتابخانې لرو.<br>په دغه ډول په وزارتونوکې هم کتابتونونه شته چې دوزارتونو له کتابتونوسربیره دکابل پو هنتون د کتابتون، د افغانستان دعلومو داکاډمی د کتابتون، دافغانستان بانک د کتابتون او دداسې نورو یادونه کولاى شو.<br>دغه راز د اطلاعاتو او کلتور وزارت په مرکز او ولایتونوکې کتابتونونه لري.<br>په هیواد کې په شخصي ډول هم دیوشمیرلیکوالو په کورونو کې داسې شخصي کتابتونونه شته چې په هغو کې نایابه کتابونه او قلمي نسخې وجود لري.<br>د کتابونو په درلودلو کې ډیره مهمه داده چې هم باید کتابونه سم او ښه وساتل شي او هم باید مطالعه شي او ګټه ترې واخیستل شي. له دې امله چې کتاب ډیر ارزښتونه لري، په نړۍ کې داپریل **۲۳**نیټه د کتاب د نړیوالې ورځې په توګه نومول شوي ده. دا ورځ د لومړي ځل لپاره په **۱۹۹۵**کال کې ولمانځل شوه.<br>کتابونه د علمي نړۍ دروازه بلل کیږي. ټول علوم د کتاب په واسطه خپریږي او له یوه نسل څخه بل نسل ته پاتې کیږي او ترې کار اخلي، ځکه خو زموږ په ځوانانو لازمه ده چې د کتابونو مطالعې ته زیات وخت ورکړي. علم او پوهه ترلاسه کړي او په شخصیت کې مثبت بدلونونه راشي. | |

# پنځم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نیم درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | ترافیکي لارښوونې |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>پوهنیزې<br>مهارتي<br>ذهنیتي | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به ترافیکي لارښوونې وپیژني.<br>- ترافیکي لارښوونې په عملي کړای شي.<br>- د ترافیکي لارښوونو له زده کړې او عملي کولو سره به یې مینه پیدا شي. |
| د تدریس لارې | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| د تدریس مرستندوی توکي | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکټور |
| مقدماتي فعالیتونه | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| انګیزوي پوښتنې | له زده کوونکو څو انګیزوی پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په فکر د ترافیکي لارښوونو مراعات کول څه ګټه لري؟ |
| د ښوونکي فعالیتونه | - له مقدماتي فعالیتونووروسته ستا سوله لوستلو وروسته په تکره زده کوونکو باندې څو واري متن ولولئ او خپله مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او په خپله خوښه دې یوه یوه جمله چې یې خوښیږي، هغه دې په خپلو کتابچوکې ولیکي بیا دې څوتنه ولولي.<br>- یو زده کوونکی دترافیکي نښو د زده کړي د ګټو په هکله خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي. د ترافیکي نښونښانو د مراعات کولو په هکله دې خپلو ټولګیوالو ته خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي، تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- یو زده کوونکی دې تختې ته پورته شي، پرتختې دې د کتاب له مخې څو لغتونه ولیکي، بل زده کوونکي دې پرخپله خو ښه تختې ته ورشي او په جملو کې دې وکاروي. بل زده کوونکی دې د هغه تیروتنه ووایي او پرتختې دې سمه کړي.<br>- زده کوونکوته ووایي چې مونږ دڅه لپاره ترافیکي نښې نښانې زده کوو؟ |
| د لوست ارزونه | د لوست د زده کړې په هکله څو پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- دترافیکي نښو او د زیګنال څراغونو زده کړې څه ګټه لري؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په سرک باندې د تیریدلو په هکله څوکرښې ولیکي. |
| اضافي معلومات | ترافیک یوه نړیواله او پیژندل شوي کلمه ده. په سرک باندې دنقلیه وسایطو، اشخاصو او حیواناتوتګ راتګ ته ترافیک وایي. ترافیک له درو برخو جوړ دي. انسان، لاره او نقلیه |

وسایط.
که له دې درو څخه یو نه وي، ترافیک نه بلل کیږی. که چیرې وغواړو چې له ترافیکي زیانونو څخه په امن کې پاتې شو، باید دغه درې واړه برخې په سمه توګه تنظیم شي.
له ترافیکی زیانونو څخه د مخنیوي لارې چارې هم په ترافیک پولیسو، په سرکونوباندې په تلونکوکسانو او په هغواشخاصو پورې اړه لري چې له نقلیه وسایطو څخه کاراخلي. ټولو هیوادوالوته لازمه ده چې په ترافیکی قوانینو پوه وي.
هغه کسان چې په سرکونوتیریږي، باید له ترافیکي قوانینو، نښو او اشارو سره بلد اوسي. د بیلګې په توګه پلي خلک باید په لومړي ګام کې په پلي لار ولاړ شي او که چیرې په ښارونوکې د سرک په غاړه پلې لاره نه وي، باید دسرک په غاړه ولاړ شي او ترافیکو ته یې پام وي. له سرک څخه د تیریدلوپه وخت کې باید ښي او کيڼ خواته وګوري او په کراره له سرک څخه تیرشي.
په ښارونو کې د سرکونو په څلور لارو کې سیګنال څراغونه وي او نورې نښې نسانې وي او د سرکونو په زیاتو څلورو لارو اوسرکونو کې ترافیک پولیس هم موجود وي چې له سرکونو څخه خلکو ته دتیریدلو لارښوونې کوي اوسرغړوونکي جریمه کوي.
په اکثره پرمختللو هیوادونوکې ټولې لویي ترافیکي لارې د مخصوصو کمپیوتري کمرو پواسطه اداره کیږي اوسر غړوونکو ته سزا ورکوي.
په افغانستان کې دترافیکو تاریخ دامیر عبدالرحمان خان له وخت څخه راپیل شوی دی. په هغه وخت کې زموږ په هیواد کې موټړ نه وو، د ترانسپورت کارونه به د اسونو، کچرو او فیلانو پواسطه سرته رسیدل.
د امیر حبیب الله خان (۱۲۷۸-۱۲۹۸د واکمنۍ په وخت کې دسرکونو په جوړولوکاروشو او دوه موټرونه افغانستان ته راوستل شول. دامیرامان الله خان په وخت کې په هیوادکې په ترافیکی برخه کې پرمختګ رامنځته شو. ډیر سرکونه جوړ شول. په ۱۳۴۲کال کې د ترافیکو اداره جوړه شوه چې اوس دکورنیو چارو په وزارت کې د لوی ریاست په چوکاټ کې په کار بوخته ده.
محترمو ښوونکو! خپلوزده کوونکو ته چې دوی ماشومان دي، له ترافیکي قوانینو سره بلد نه دي، تاسو ورته دترافیکي قوانینو د مراعاتولو په برخه کې لارښوونه و کړئ او کولای شئ چې له سرک څخه تیریدل او په سرک تیریدل ورته عملا وښیئ.

# شپږم لوست

## د تدریس لاربنود پلان

## د تدریس وخت: د او نیم درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د نیالگیو ایښودل |
|---|---|
| د زده کړې موخې: <br>پوهنیزې <br>مهارتي <br>ذهنیتي | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي: <br>- د نیالگیوپه ایښودلو به پوه شي. <br>- متن به ولوستلای او و لیکلای شي. <br>- د نیالگیو له کینولو سره به یې مینه پیدا شي. |
| د تدریس لارې | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| د تدریس مرستندوی توکي | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| مقدماتي فعالیتونه | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| انگیزوي پوښتنې | له زده کوونکو څوانگیزوي پوښتنې وکړئ، لکه: <br>- ستاسو په فکر دنیالگیو کینول به څه گټه ولري؟ |
| د ښوونکي فعالیتونه | - له مقدماتي فعالیتونو وروسته متن ورته ولولئ اوبیا په څو زده کوونکو باندې متن تکرار کړئ. <br>- یو زده کوونکی دې پورته شي، د لوست پاراگراف دې ووایي. بیا دې څو زده کوونکي دهغه پاراگراف په هکله نورې خبرې وکړي. <br>- زده کو ونکي دې په خپلو کتابچو کې لاندې لغتونه معنا او بیا دې په جملو کې وکاروي. <br>- څو زده کوونکي دې په ټولگي کې دنیالگیو دکینولوپه هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي. <br>- له زده کوونکو پوښتنه و کړئ چې په درسي کتاب کې ولې دنیالگیو دکینولو لوست راوړل شوی دی؟ سم ځواب په نورو زده کوونکوتایید کړئ. <br>- یو زده کو ونکی دې تختې ته پورته شي. د کتاب یو پاراگراف دې بل زده کو ونکی ته ووایي، هغه دې پرتختې ولیکي او بیا دې ولولي. نور زده کو ونکي دې دهغه تیروتنه ونیسي او د اصلاح لپاره دې تختې ته راشي. <br>- اوس دې زده کوونکي په خپلو کتابچوکې د نیالگیو دکینولوپه هکله یوکرښه ولیکي او بیا دې پرتختې ولیکي. نور زده کوونکي دې د هغه تیروتنه ووایي او په خپله دې ولیکي. |
| د لوست ارزونه | د لوست د زده کړې د ارزونې لپاره پوښتنې وکړئ، لکه: <br>- د نیالگیو کینول څه گټه لري؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په کورکې دنیالگیو دکینولو په هکله څوکرښې ولیکي او په وروستی درسي ساعت کې دې ولولي. |

| اضافي معلومات | نیالګې په دوه ډوله دي. یوډول یې میوه لرونکي او بل ډول یې بې میوې نیالګي دي چې د ښکلا له پاره کینول کیږي.<br>هغه نیالګي چې د دولتي ادارو یا ښاروالۍ له خوا کینول کیږي ډېره برخه یې دبې میوو ونو نیالګي وي چې یوازې دښکلا له پاره وي. دکرنې وزارت په یوشمیردولتي باغونوکې دبیلابیلو بې میوو ونو نیالګې د پلورلو لپاره هم کینوي، لکه: د ننګرهار ولایت د مملې په باغ کې چې د میوه لرونکواو بې میوو ونو هر ډول نیالګې د پلورلو لپاره په کې شته. دولتي ادارې یوازې د میوه لرونکو ونو په باغونو کې د میوو د پلورلو لپاره میوه لرونکي نیالګي کینوي، لکه د ننګرهار ولایت کانال ریاست په فارمونو کې چې دمالټواو زیتونو نیالګي کینول شوي او دزیتون دمیوو او دانو له پاره یې یوه فابریکه هم داډې په فارم کې ورته جوړه کړي ده چې په هغې کې زیتون غوړي، دزیتون اچار او مربا جوړوي او یوه اندازه مالټې یې بهر ته ځي.<br>بل ډول هغه نیالګي دي چې خلک یې په باغونوکې کینوي. په دې کې هم میوه لرونکي او بې میوو ونې راځي.<br>نیالګي په عمومي ډول ډېرې ګټې لري له لرګیو څخه یې دسون او ابادۍ او له میووڅخه یې دخوړلو لپاره کاراخلو.<br>ډېره مهمه داده چې نیالګي له تندې وساتل شي او به ورته واچول شي او په یومناسب ځای کینول شي. موږ باید نه یوازې په خپلو نیالګیو پام وکړو بلکې په دولتي نیالګیو هم پام وکړو چې څوک یې مات نه کړي. زموږ په هیواد کې هرکال دښارو الی له خوا په ملیونو نیالګې کینول کیږي، که دسرک په منځ کې وي او که دسرک په غاړه وي، موږ ګورو چې دکاندار یا کورونه ورته او به نه اچو ي او وایې چې داخو زموږ نه دي، دا دښاروالۍ کار دی. حال داچې هغه بیت المال دی. هغه زموږ دهیواد دهر و ګړي مال دی او باید ورته پام وشي.<br>ښاغلی ښوونکی! خپلوزده کوونکوته دنیالګیو دکینولو په ارزښت نورې خبرې هم وکړئ.ورته ووایئ که چیرې زموږ یوهیوادوال هرکال یونیالګی کینوي او هغه وروزي، نوموږ به په کال کې په میلیونو نیالګې کینوو او هغه به وروزو او په دې توګه به مو خپل هیواد سمسور او ښکلی شي. |
|---|---|

# او وم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نیو درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **چاپیریال** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- د چاپیریال ارزښت به وپیژندلای شي.<br>- د چاپیریال په هکله به خبرې وکړای شي.<br>- له چاپیریال ساتلوسره به یې مینه پیداکړای شي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو انگیزوي پوښتنې وکړئ:<br>- ستاسو په نظر دچاپیریال پاک ساتل به څه گټه ولري؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونوروسته متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- په زده کوونکو متن ولولئ. په خپله خوښه دې یوپاراگراف وټاکي او څوتنه دې پرتختې ولیکي.<br>- څو زده کوونکي دې ووایي چې چاپیریال څه ته وایي؟ سمه ځواب ومنئ.<br>- څو زده کوونکي دې دمتن دمفهوم په هکله خبرې وکړی او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- د لاندې جملو تش ځایونه دې د لېندیو په مناسبو اوسمو کلمو سره په خپلوکتابچوکې بشپړې کړي:<br>الف: هر هغه څه چې ستاسو شاو خواکې دي ستاسو چاپېریال __________.( و، کړ، دی )<br>ب: ستاسو چاپېریال پرتاسو ډېرې اغېزې ______________________.<br>( لري، کړی، درلود )<br>د: د محیط ساتنه دټولو خلکو دنده __________________. ( دی، ده، وي )<br>- زده کوونکي دناپاک چاپیریال دزیانونوپه هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- که څوک خپل چاپیریال پاک نه ساتي له داسې کسانو سره څه وکړو؟ په دې هکله دې څوکسه خبرې وکړي.<br>-زده کوونکو ته ووایئ چې په لاره کې له یوبل سره جنگ ونه کړي اوټول یوبل ته درناوی ولري.<br>- له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې پاک اوسمسوره چاپیریال څنگه جوړولای شو؟ |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست دزده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- څنگه کولای شو خپل چاپیریال پاک وساتو؟ |

| | |
|---|---|
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې دچاپیریال دښه ساتلو په هکله دې څوکرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | هغه ځای ته چاپیریال وایي چې په هغه کې ژوند جریال لری. یا په بل عبارت زموږ د استوګنې شاو خوا د چاپیریال په نوم یادیږي.<br>نړیوالو څیړنو ښودلې ده چې ورځ په ورځ په نړۍ کې نفوس زیاتیږي صنعتي دستګاوې، د نقلیه وسایطو زیاتوالی، د خللکو بي پروایي، د کیماو ي موادو سوخت او لګښتونه دا ټول په خپل وارسره په ککړتیا کې رول لوبوي.<br>له همدې امله نړیوال د چاپیریال د ساتنې مهمې موضوع ته متوجې شول. د لومړي ځل لپاره د ۱۸۸۴کال راهیسې المانیانو دا افریقا په شرق کې په تانزاینا کې د ځنګلونو د ساتنې قوانین تصویب کړل. بیا وروسته د المانیانو له خوا د لومړي ځل لپاره د افریقا په شرق کې د وحشي حیواناتو ملي پارک جوړ شو، له دې وروسته دنورو هیوادونوهم ورته فکرشو. د استوګنې د چاپیریال د ساتنې په برخه کې یې هلی ځلې پیل کړې.<br>یوټکی د یادولو وړ دی او هغه دا چې داستوګنې چاپیریال د انسان دفعالیتونو په اساس بدلون مومي، هم ښه کیږي او هم خرابیږي. که چیرې داستوګنې دچاپیریال دساتلو وخواته پام وانه ړول شي، نو داستوګنې چاپیریال به ککړشي او له کارولوڅخه به ووزي.<br>دغه راز موږ هر ورځ له ۳۰ فیصده زیات پلاستیکونه کاروو چې په محیط کې دهغوکارول ککړتیا رامنځته کوي، نو لازمه ده چې موږ خپل چابیریال وساتو.<br>چاپیریا ل له څوپلوه ساتل کیدای شی. دبیلګې په توګه په انفرادي ډول، دیو سازمان په واسطه، ددولت په واسطه.<br>له دې امله زموږ ټولو دنده ده چې دچاپیریال په ساتلو کې ونډه واخلو.<br>موږ باید نه یوازې خپل چاپیریال له تخریب څخه وساتو، بلکې د چاپیریا ل دسمسوره کولو لپاره هم زیا ر وباسو. له ۱۹۶۰کال راپدې خوا چې داستوګنې دچاپیریال دساتنې غورځنګ رامنځته شوی دی، داستوګنې د چاپیریال دساتنې په برخه کې ډیرې لارښوونې شوي او عملي شوي دي. سره له دې لازمه ده چې خپلو زده کوونکوته داستوګنې دچاپیریال دساتنې او جوړولو په برخه کې لارښوونې وشي. |

## اتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نیمې درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | گټور خواړه |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>پوهنیزې<br>مهارتي<br>ذهنیتي | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به بیلابیلو خوړوته اړتیا وپیژندلای شي.<br>- د لوست متن به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- دخوړو په ارزښت به خبرې وکړای شي.<br>- له بیلابیلو پاکو خوړو سره به یې مینه زیاته شي. |
| د تدریس لارې | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| د تدریس مرستندوی توکي | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| مقدماتي فعالیتونه | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| انگیزوي پوښتنې | د انگیزوي پوښتنوپه کولو سره لوست پیل کړئ، لکه:<br>- ښه خواړه څه گټه لري؟ |
| د ښوونکي فعالیتونه | - له مقدماتي فعالیتونووروسته متن ولولئ ، بیا په زده کوونکو متن څو واره ولولئ او تاسو ورسره په لوستلو کې مرسته وکړئ.<br>- متن دې په چوپه خوله ولولي او بیا دې له متن څخه یوه جمله په خپله خوښه وټاکي او په خپلو کتابچوکې دې ولیکي. بیا دې څوکسه په ټولگي کې ووایي.<br>- یوکس دې پورته شي. بل زده کوونکي ته دې یوه جمله د کتاب له مخې ووایي او هغه دې پرتختې ولیکي. بل زده کوونکي دې دهغه تیروتنه ونیسي او سم شکل دې ولیکي.<br>- یو زده کوونکي دې له بل زده کوونکي څخه د کتاب دمتن په باره کې پوښتنه وکړي او هغه دې ورته ځواب ورکړي، لکه:<br>- میوې وجود ته کوم قوت ورکوي؟<br>- څو زده کوونکي دې په ټولگي له یوبل سره محاوره وکړي.<br>- زده کوونکي دې په وارسره پورته شي، لاندې پوښتنو ته دې ځوابونه ورکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- موږ په خپلو کورونو کې دخوړو لپاره څه ډول پروگرام تیار کړو؟<br>- میوه د وجود لپاره څه ډول گټه رسوي، خبرې پرې وکړئ ؟ |
| د لوست ارزونه | لوست ته دزده کوونکو دپام اړولو په خاطر څوانگیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسوپه اند دبیلابیلو خوړو خوړل روغتیا ته څه گټه رسوي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په کورکې دبیلابیلو خوړو دنه خوړلو د زیانونو په هکله څوکرښې ولیکي. |
| اضافي معلومات | وجود ډول ډول خوراکي موادو ته اړتیا لري او د هغوی په خوړلو سره نه یوازې داچې وجود |

وده کوي، بلکې له راز راز ناروغيو څخه هم ساتل کيږی او وجود د هر ډول مکروبونو په مقابل کې مقاو مت پيدا کوي.

خواړه په درې ډوله دي. يو ډول پروتيني خواړه دي چې په خوړلو سره د انسان وجود غوښه کوي او وجود غټيږي يعنې انسان چاغيږي، لکه:کچالو، وريجې، دال، لوبيا، نخود او که ووايو ټول هغه خواړه چې دانې لري.

دويم ډول ويټامين درلودونکي خواړه دي چې په خوړلو سره يې دانسان وجود دمکروبونو په مقابل کې ترډيرې اندازې معافيت پيدا کوي. په دې ډول خوړو کې وچه او تازه ترکاري، وچې او تازه ميوې شامليږي.

دريم ډول هغه خواړه دي چې دهغو په خوړلو سره په وجود کې انرژي رامنځته کيږي او انسان ته دکارکولو ځواک ورکوي، لکه: غوړ او خواړه.

ځيني خواړه داسې دي چې په هغو کې درې واړه قوتونه موجود وي، لکه: شدې او هگی.

دبيلا بيلو خوړو په خوړلو کې لازمه ده چې توازن په پام کې وساتل شي، دبيلگې په توگه يو وخت يو ډول خواړه په بل و خت کې بل ډول خواړه او په دريم وخت کې بل ډول خواړه وخوړل شي او يا داچې د ډوډۍ دخوړلو په وخت کې خواړه داسې برابر شي چې له هر ډول څخه خواړه پکې وي چې وجود ته هر ډول قوت ورکړي.

که چيرې په خوړوکې تواز ن وساتل شي، ترډيره دمکروبونومخه نيول کيږي له ناروعيوڅخه ساتل کيږي.

کوښښ بايد داو شي چې خوراکي مواد بايد پاک او گنده شوي نه وي. دغذايی موادو ککړتيا او وروست والی دانسان لپاره ډيرې ستونزې رامنځته کوي او په ډول ډول ناروغيو باندې اخته کيږي. که چيرې يخ شوي خوراکونه په سمه توگه ونه ساتل شي، دغذايي مسموميت سبب کيږي چې نښې نښانې يې کانگې او د اسهال سبب کيدای شي.

زموږ هيواد يوبيوزله هيواد دی کيدای شي چې کورنيو ته لکه څنگه چې لازمه ده، دخوراکي موادو په برابرولو او توازن کې ددوی په فکر څه ستونزې ورمعلومې شي، خو داکار څه ستونزې نه لري، کولای شي چې د ډوډۍ خوړلو په دوو پرله پسې و ختونو کې ديوډول قوت خواړه ونه خوري، مثلا: که په غرمه کې کچالو وخوري، نوکولای شي چې دشپې لپاره ترکاري پخه کړ ي او دبل وخت لپاره داسې خواړه چې نور قوت ولري، پاخه کړي.

کولای شي چې په خپل پټي کې او يا دکور په حويلی کې ترکاري و کري او که څوک يې ونه لري، کولای شي چې په دسترخوان باندې د ترکاری يوډول چې ارزانه وي موجود وي او کله کله داسې هم کيدای شي داسې خواړه وخوري چې درې واړه يا دوه قوتونه ولري. نن سبا هر څوک کولای شي چې په خوړوکې توازن رامنځته کړي، خوچې زړه يې وغواړي.

## نهم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نیٖ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | روغتیا ته پاملرنه |
|---|---|
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- دځان او کالیو دپاک ساتلو ارزښت به وپيژني.<br>- خپل ځان او کالي به پاک وساتلای شي.<br>- له پاکوالي سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | د لوست دارزونې په خاطر دې څوانگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- مکروبونه په انسانانوکې څه شی رامنځته کوي. |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونوروسته متن ولولئ اوبیا په څوزده کوونکو متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- له څوزده کوونکوپوښتنه و کړئ چې روعتیا څه ته وايي؟سم ځواب دزده کوونکو پواسطه تایید کړئ.<br>- زده کوونکي په څومناسبو ډ لوويشئ. هر ډله دې د ځان ساتلو د گټو په هکله څوجملې په شریکه ولیکي او بیا دې په ټولگي کې ووايي.<br>- یوزده کوونکي دې په وار سره دپاک چاپيریال په باره کې یوه جمله ولیکي او بیادې بل زده کوونکی بله جمله ولیکي او ودې وايي.<br>- یو زده کوونکی دځان او کالیو دنه پریمنځلو دزیان په باره کې یوه جمله پرتختې ولیکي او بیا دې ولولي. بیا دې بل زده کوونکی پورته شي، په خپله خوښه دې یوه جمله ولیکي.<br>څو زده کوونکي دې د ځان او کالیو د ناپاک ساتلو د زیانونو په هکله خبرې وکړي.<br>- زده کوونکي دې متن ولولي. په خپله خوښه دې کلمې په جمله کې وکاروي او بیا دې څوتنه په ټولگي کې ووايي.<br>- یو یا څو زده کوونکي دې د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي.<br>- یو زده کوونکی دې ووايي چې په څه ډول د استوگنې ځایونه پاک وساتو؟<br>- څو زده کوونکي دې د کتاب متن ووايي او نور دې ورته غوږ ونیسي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو څخه د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ. |
| **کورنیٖ دنده** | زده کوونکي دې د ځان پاک ساتلو دگټو په هکله څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

**اضافي معلومات**

پاکوالی د ایمان یوه برخه ده. لازمه ده چې خپل ځان، کالي او د استوګنې ځایونه پاک وساتو. که چیرې خپل پاکوالي ته پام ونه کړو، وجود ته راز راز مکروبونه دننه کیږي او په ساري او غیرساري ناروغیو باندې د اخته کیدو زمینه برابریږي چې بیا تر ډیره دانسان د ځوریدو سبب او ان چې د مرګ سبب هم کیږي.

یو شمیر ناروغۍ دککړو او خوسا شوو خوراکي موادو له خوړلو څخه رامنځته کیږي او یا خو وجود ته د خان، کالیو او داستوګنې دسیمې له ناپاکی څخه چې مکروبونه وجود دننه شي، رامنځته کیږي.

کیدای چې وجود ته د مکروبونو ننوتل سمدلاسه اغیزه ونه کړي، خو مکروبونه تر ډیره په وجود کې پاتي کیږي. کله چې وجود کمزوری شي، د ناروغۍ نښې رامنځته کیږي. دغه ډول که انسان خپله صحي برخې ته پام ونه کړي، کیدای شي چې په ساري ناروغیواخته شي او بیا له ده څخه دکورنۍ نورو غړو ته ورسیږي. وایي چې وقایه ترتداوی ډیره ارزانه اوبهتره ده. هغه کسان چې تل دخپلو ځانونو ،کالیو پاکوالي ته پاملرنه کوي اوهغه پاک ساتي اودغه راز دخپلو کورونو دپاکوالي په برخه کې کوښښ کوي ویلا ی شو چې داسې ځایونوته مکروبونه سرایت کولای نشي اوپه پایله کې دمکروبونو مخه نیول کیږي.
که یوڅوک ناروغه شي دهغه دناروغۍ په تداوی باندې نه یوازې داچې ډیر لګښتونه راځي بلکې له نوموړي ناروغ سره دکورنۍ ډیر غړي له کاره ووځي اوپه تداوی کې یې ور سره مرسته کوي اودا هم ډیر امکان لري چې ناروغي یې له یوه شخص څخه دکورنۍ بل غړي ته هم ولیږدیږي. دیوه ناروغ کس دبي احتیاطی له امله نورې کورنۍ اوخلکوته زیان رسیږي، نوښه داده چې زموږ ګران هیوادوال اوپه تیره بیا زموږ درانه زده کوونکي چې دغه ټکي ډیره پاملرنه وکړي .
په اوس وختونو کې چې ګورو له یوې خوا دخلکو ترمنځ اړیکې زیاتي شوي ، تګ راتګ زیات دی اوله بلې خوا چاپیریال هم لکه څنګه چې لازمه ده پاک نه دی اوپه ناپاک چاپیریال کې دمکروبونو دراپیداکیدو او ودې لپاره ډیره ښه زمینه برابریږي چې پکې وده وکړي،نوپه داسې حالاتو کې دمکروبونو دلیږدیدنې لپاره ښه زمینه برابریږي .
له دې امله ښایي چې هم ځان پاک وي، هم کالي پاک وي اوهم دکور په پاکوالي کې زیار وایستل شي اوله دې سره سم باید دخپل ماحول پاکوالي ته پاملرنه وشي.
ډیر ځله داسې لیدل کیږي چې دیو چا ځان ، جامې اوکور پاک وي خوماحول یې ناپاک وي له ناپاک ماحول څخه هم دمکروبونوسرایت انسان ته په اسانه کیدای شي، نو ویلای شو چې دماحول پاکوالی هم یواساسي شرط دی . له همدې امله اوس دچاپیریال پاکوالي ته ډیره پاملرنه اوښتي ده اوهر چا ته سپارښتنه کیږي چې دچاپیریال په پاکوالي اوسمسورتیا کې برخه واخلي.

## لسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نی درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د پسرلي ترانه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به په پسرلي کې خپل مسوليتونه وپيژندلای شي.<br>- متن به ولوستلای او وليکلای شي.<br>- له پسرلي سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يو کسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | له زده کوونکوڅخه انگيزوي پوښتنې وکړئ. |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته متن ورته ولولئ اوبيا په زده کوونکو متن ولولئ ورسره مرسته وکړئ.<br>- يو زده کوونکی دې پرتختې دپسرلي کلمه د کتاب له مخې وليکي او بل دې په جملوکې و کاروي، دريم دې دجملې تيروتنه ونيسي، که يې درلوده، هغه پرتختې ورته سمه کړئ.<br>- څوتنه دې د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي.<br>- په څوزده کوونکوباندې پرتختې دپسرلي دمياشتو نومونه ووايئ. که يې زده نه وو تاسويې ورته ووايئ.<br>- څو زده کوونکي دې دپسرلي په موسم کې د خپلو مسووليتونو د سرته نه رسولو په هکله خبرې وکړي، څو مثالونه دې ورکړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي.<br>- په څو زد ه کوونکو باندې محاوره وکړئ.<br>- څو زده کوونکي دې په ټولگي کې د پسرلي د هوا په هکله خبرې وکړي.<br>يوزده کوونکي دې تختې ولاړشي. په خپله خوښه دې يوه جمله وليکي. بل زده کوونکی دې يوه بله جمله ورباندې ور زياته کړي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست دزده کړې په هکله پوښتنې و کړئ، لکه:<br>- پسرلی دکال کوم موسم دی؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکی دې په کورکې دپسرلي په هکله څوکرښې وليکي. |

| | |
| --- | --- |
| **اضافي معلومات** | يوکال څلور فصلونه لري: پسرلی، اوړی، منی اوژمی.<br>پسرلی درې میاشتې لري : حمل، ثور، جوزا<br>اوړی درې میاشتې لري : سرطان، اسد ، سنبله<br>منی درې میاشتې لري: میزان ، عقرب، قوس<br>ژمی هم درې میاشتې لري: جدي، دلو اوحود<br>زموږ په هیواد کې دکلونو سنه هجري شمسي دود ده .<br>زموږ دهیواد په سړو ولایتونو کې دژمي واورې اوري لکه : بامیان،کندز ، وردک ، تخار، بغلان ، لوګر ،پکتیا او بخشان اوځینو نوروکې اودځینونورو ولایتونو په یوشمیر سیمو کې هم واورې اوریږي.<br>دپسرلي په فصل کې هوا ښه کیږي خو بارانونه ډیروي اودهیواد په ټولو سیمو کې په وارسره ونې اوبوټې شنه کیږي اوګلان کوي.<br>سره له دې زموږ هیواد یو غرنی هیواد دی، خوډیرې دښتې هم لرو. دکرنې لپاره زموږ په هیواد کې ځمکې ډیرې دي چې دکرنې لپاره ترې کار اخیستل کیږي.<br>زموږ دهیواد له میوو څخه انګور، انار ، خټکي ، بادام اوپسته اودغه یوه اندازه مالتې بهرنیو هیوادنو ته صادیریږي ، په مقابل کې یې له بهرنیو هیوادونو څخه ماشین الات اوټوکران را واردیږي.<br>زموږ دهیواد ډیره برخه اوس دښتو نیولی ده اوهیله ده چې په راتلونکي کې ابادې شي.دهیواد ابادي اوپرمختګ دهیواد والو په رښتینولی، پوهې اوکار پورې تړلی دی. همدغه کوچني ماشومان اوزده کوونکي دي چې باید دعلم اوپوهې په ګانه سنبال شي ،دهیواد پالنې روحیه پکې وروزل شي اودراتلونکي لپاره تیار شي. کورنیو ته هم لازمه ده چې دخپلو اولادونو په مقابل کې خپل مسؤولت سرته ورسوي اوښوونځیوته یې دتګ په برخه بي تفاوته پاتي نشي اوزمینه ورته برابره شي . په علم اوپوهه باندې دتنکیو ماشومانو روزنه نه یوازې داچې دکورنیو لپاره په ګټه دي بلکې د ټولنې په وړاندې هم خپل مسؤولیت هم سرته رسوي . |

## يوولسم لوست

## د تدريس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د او نیء درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **کال** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | . زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- کال به وپيژندلای شي.<br>- د لوست متن به ولوستلا ی او وليکلای شي.<br>- دکال په او ږدو کې به يې له درس ويلو او کارکولوسره مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | لوست ته د زده کوونکو د متوجي کولو لپاره ځوانگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- تاسو کله دکال نوم او ريدلی دي؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته خپله ورته متن ولولئ اوبيا په ځو زده کوونکو باندې متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- زده کوونکي دې دمتن ځو کلمې په خپلوکتابچوکې په جملوکې وکاروي او بيا دې يوزده کوونکي خپلې جملې پرتختې وليکي.<br>- ځو زده کوونکي دې دکال په هکله ځوجملې پرتختې وليکي او بل زده کوونکی دې ولولي. که څه تيروتنه يې کړي وه، هغه ديو زده کوونکي پواسطه سمه کړئ.<br>- زده کوونکي په ځو ډلو وويشئ. هره ډله دې دکال په هکله خپل نظر ورکړي او بيادې دخپل استازې پواسطه ووايي.<br>- ځو زده کوونکي دې دکال دهغو وختونو په هکله خبرې وکړي چې ميوې په کې پخيږي.<br>- يوزده کوونکي دې د کتاب له مخې يوه نيمگړې جمله پرتختې وليکي بل داو طلب زده کوونکي دې پوره کړي.<br>-که وخت و، په زده کوونکو محاوره وکړئ.<br>– زده کوونکو ته ووايئ چې دتيز باران اويا ږلی په وخت کې په خوړونو کې ولاړ نشي ياداچې دپلونو لاندې پټ نه شي داړتيا په وخت کې دې نږدې جومات اويا دکوم داسې ځا کورته ولاړشي چې ورسره پيژني. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکوڅخه د لوست دزده کړې په هکله پوښتنې وکړئ:<br>- ستاسوښوونځی دکال په کوم وخت کې شروع شوی دی؟ |
| **کورنیء دنده** | زده کوونکوته کورنیء دنده ورکړئ چې پسرلی څه وايي؟ |

| | |
|---|---|
| **اضافي معلومات** | هر کال له میاشتو او ورځو څخه تشکیل شوی دی. دکلونو دپیژندلو له سنو څخه کار اخیستل کیږي.په نړۍ له درو ډوله سنوڅخه کار اخیستل کیږي.<br>یوه میلادي سنه ده چې په دنړۍ په یوشمیر هیوادونو کې کارول کیږي اودهغې له مخې کلونه معلومیږي.<br>بل ډول یې هجري قمري سنه ده چې له دې څخه هم د نړۍ په یو شمیر هیوادونو کې دکلونو دپیژندلو لپاره کار اخلي.<br>دریم ډول یې هجري شمسي سنه ده چې له دې سنې څخه هم دنړۍ په ډیرو هیوادونو کې کار اخلي او پکې دود دي.<br>زموږ په هیواد کې پخوا هجري شمسي سنه کاریدله چې سږ کال ۱۳۹۵کال دی . دهجري اوقمری ترمنځ ۴۱کاله تفاوت دی . دمیلادي او هجري شمسي سنې ترمنځ ۶۲۱ کاله توپیر لیدل کیږي .که چیرې له هجري شمسي سره ۴۱جمع کړو هجري قمري ترې جوړیږي اوبرخلاف که له قمري څخه ۴۱منفي کړو هجري شمسي ترې جوړیږي.<br>له میلادي سني څخه ۶۲۱منفي کړو هجري شمسي ترجوړیږي اوبرخلاف یې هجري شمسی جوړیږي.<br>میلادي سنه دحضرت عیسی دتولد نه اخیستل شوي اوپیل شویده اوهجري دحضرت محمدﷺ له هجرت وخت څخه اخیستل شوي ده .<br>کالونه ددې لپاره رامنځته او سره په سنو سره یې توپیر وشي چې کو م کار اوعمل په کوم و خت کې شوی دی اویا په کوم وخت کې وشي.<br>خو تر څه دا مهمه ده چې موږ باید وخت خوشي تیرنه کړو او د وخت له هرې شیبې څخه کا ر واخلو اوکار اخیستل باید مثبت وي دځان اوټولنې په ګټه وي.<br>دکال هره شیبه چې تیریږي بیرته نه راځي . تیرکلونه چې تیر شول هغه تیرشوي دي بیرته نه راګرزي. نیکمر غه هغو څو ک دي چې دکال په اوږدو کې کار کړی وي اودمخکې ورځې کدار یې دوروستی ورځې په اوږو وراچولی نه وي.<br>که دا کار له چا څخه شوی وي په حقیقت کې یې هم خپل ځان تیر ایستلی دی اوهم یې خپلې ټولنې ته زیار اړولی دی .<br>اوس دساینس اوتکنالوژی وخت دی<br>څومره چې ساینس او ټیکنالوژي مخته ځي په هماغه اندازه بیلا بیل مسلکونو ته اړتیاوې زیاتیږي. دا اړتیاوې ځوانان پوره کولای شي چې په ښوونځیو کې دکال له پیل څخه دخپلو لوستونو لپاره پروګرام اوپلان رامنځته اودهغه سره سم خپل دندې سرته ورسوي. |

## دولسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نی دري درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| د لوست موضوع | له ټولګیوالو سره مینه |
| د زده کړې موخې:<br>پوهنیزې<br>مهارتي<br>ذهنیتي | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به ټولګی وپیژندلای شي.<br>- متن به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- له زده کوونکوسره دښو او دوستانه اړیکو له درلودلوسره به یې مینه پیدا شي. |
| د تدریس لارې | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| د تدریس مرستندوی توکي | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| مقدماتي فعالیتونه | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| انګیزوي پوښتنې | لوست ته دزده کوونکو دتیارى لپاره څوانګیزوي پوښتنې وکړئ. |
| د ښوونکي فعالیتونه | - له مقدماتي فعالیتونوروسته خپله ورته یوځل متن ولولئ اوبیاپه هغو زده کوونکو چې تراوسه یې متن لوستی نه دی، متن ولولئ او نور دې ورته غوږ شي.<br>- څو زده کوونکې دې دمتن په باره کې خبرې وکړي.<br>- یو زده کوونکي دې له بل څخه د ټولګي په هکله پوښتنه وکړي او بل دې ورته ځواب ورکړي ښوونکي دې ورته لارښوونه وکړي.<br>- یو زده کوونکی دې پرتختې ولیکي (ټولګی )، نورزده کوونکي دې ټولګي په هکله یوه یوه جمله ولیکي او بل زده کوونکی دې بیا ولولي.<br>- په زده کوونکو باندې محاوره وکړئ.<br>- یو زده کوونکی دې پرتختې دوه جملې ولیکي چې تش ځایونه ولري. نور زده کوونکي دې دوه ډلې شي. هر ه ډله دې یوه جمله په خپلو کتابچو کې پوره کړي. بیا دې یو زده کوونکی پرتختې هغه دواړه جملې پوره کړي. که چاتیروتنه کړي وي، هغه دې په خپلو کتابچو کې سمه کړي.<br>- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې د لوست ویلو او زده کولو په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي. |
| د لوست ارزونه | له زده کوونکو څخه د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې و کړئ: دبیلګې په توګه ورته ووایئ چې له ټولګي سره مینه څه ته و ایي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکوته کورنی دنده ورکړئ چي له ټولګیوالو سره دمینې په هکله |

## دیارلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نی درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| د لوست موضوع | د اختر ورځ |
| د زده کړې موخې: پوهنيزې مهارتي ذهنيتي | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- د اختر ورځ به وپيژندلای شي.<br>- د اختر په هکله به خبرې وکړای شي او خپلې خبرې به وليکلای شي.<br>- له اخترسره به مينه پيدا کړای شي. |
| د تدریس لارې | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| د تدریس مرستندوی توکي | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| مقدماتي فعاليتونه | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| انگيزوي پوښتنې | له زده کوونکو ځوانگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په فکر په کال کې څواختره وي؟ |
| د ښوونکي فعاليتونه | - له مقدماتي فعاليتونوروسته متن ورته ولولئ وروسته دې څو زده کوونکي متن ووايي او نور دې ورته غوږونيسي.<br>- يو زده کوونکی دې داختر نوم پرتختې وليکي. اوس دې څو زده کوونکي په وارسره تختې ته راشي د اختر د کلمې په هکله دې يوه يوه جمله ووايي او پرتختې دې وليکي.<br>- اوس دې نور زده کوونکي ورته وگوري او تيروتنه دې ورته سمه کړي.<br>- څو زده کوونکي دې ووايي چې اختر څه معنا لري؟<br>- څو زده کوونکي دې د اختر په هکله يوه خبره وکړي او نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- څو زده کوونکي د اختر په ارزښت خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- په زده کوونکو باندې محاوره وکړئ. |
| د لوست ارزونه | له زده کوونکو د لوست دزده کړې په هکله پوښتنې و کړئ. |
| کورنۍ دنده | زده کوونکوته دنده ورکړئ چې د دودونو په هکه څوکرښې په کورکې وليکي. |
| اضافي معلومات | په نړۍ کې هر هيواد او ټولنه خپل دودونه ا ود لما نځلو لپاره ځانگړي ورځې لري. داسې ورځې په ځانگړو مراسمو سره لمانځل کيږي او خلك و رته درناو ی لری. زموږ په هيواد کې هم د نمانځلو لپاره ډيرې ورځې شته چې بيلا بيل نومونه ورته ورکړل شوي دي چې يوه له هغو څخه د اختر ورځ ده.<br>موږ په کال کې دوه اخترونه لرو. يوته کوچنی اختر او بل ته لوی اختر وايي. يا يوته دروژې دمبارکې مياشتې اختروايي او بل ته بيا دقربانی اختر وايي. دواړه اخترونه زموږ مذهبي اخترونه دي.<br>په دې ورځ خلك داختر لمانځه ته ځي، له لمانځه وروسته له يوبل سره مبارکي کوي. بيا |

| | |
| --- | --- |
| | هرڅوک خپلوکورونوته ځي. په کوچني اختر کې په مبارکيو بوختيږي او په لوی اخترکې بيا له قرباني وروسته ديوبل کره مبارکيوته ځي. مشران په کورونوکې وي او کشران ورته مبارکی ته ورځي.<br>پخوا به خلکو داخترونوپه ورځو کې ميلې کولې. ماشوانو به ټالونه اچول او لويانو به ننبې ويشتلې، خواوس په اخترونو کې دلويانو دننبو دويشتلو دود له منځه تللی، خويوازې دټالونو دود شته.<br>اختر ددووکورنيو د دلاسه کولواو په منځ کې دپخلا کيدو لپاره ډيره ښه وسيله ده. داختر په ورځ خلک سره له دې چې ديوبل کورونو ته ځي يوبل ته داخترمبارکي ورکوي. کينه له زړه وباسي له يوبل سره ديو والي او اتحاد ژمنه کوي. ځکه هيواد هغه وخت ښه اباديږي چې خلک يې په خپلو کې دوستان وي او مينه او محبت ولري. |

## څوارلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | خپلواکي |
|---|---|
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به خپلواکي وپيژندلای شي.<br>- متن به ولوستلا ی او وليکلای شي.<br>- له خپلواکی سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يو کسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | له زده کوونکوڅخه څوانگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په نظرکه څوک خپلواکي ونه لري، له کومو زيانونوسره به مخامخ شي؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته يوځل ورته متن ولولئ اوبيا په څو زده کوونکو متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- زده کوونکي دې متن ولولي او هر يو دې يوه جمله خوښه کړي او ځوکسه دې پرتختې وليکي او نور دې دهغه تيروتنه ونيسي.<br>- يوه ډله دې دخپلواکۍ په هکله او بله ډله دې دخپلواکۍ دنه درلودلو په هکله خپل نظرونه شريک او يواستا زی دې وليکي.<br>- څو زده کوونکي دې د لوست دمفهوم په هکله خبرې وکړي چې پخوايې برخه اخيستي نه وي.<br>- په زده کوونکو باندې ديوې موضوع په باره کې محاوره وکړئ.<br>- يو زده کوونکی دې تختې ته ولاړشي او پرتختې دخپلواکی کلمه وليکي. څو زده کوونکي په و ارسره پورته کړئ چې دخپلواکۍ په هکله يوه يوه جمله وليکي.<br>- زده کوونکي دې متن ولولي او له متن څخه دې څو کلمې راباسي او په جملوکې دې وکاروي.<br>څو ز ده کوونکي دې ووايي چې خپلو اکي څه معنا لري؟<br>- يو زده کوونکي دې له بل څخه پوښتنه وکړي او هغه بل دې ورته ځواب ورکړي.<br>که وخت و تاسو نور ورته فعاليتونه پرې سرته ورسوئ. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست دزده کړې په هکله پوښتنې و کړئ، لکه:<br>خپلواکي څه ته وايي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د لوست متن په ښکلي ليک په خپلو کتابچو کې وليکي. |

| | |
|---|---|
| **اضافي معلومات** | د خدای (ج) له نعمتونو څخه یو هم خپلواکي ده چې انسان یې په دنیاکې خپلواک پیدا کړی دی چې په خپل ولس او هیواد کې خپلواک ژوند ولري.<br>په هیواد کې ټول انسانان باید د خپل واک او خپلواکۍ در لودونکي وي. خپلواکي د انسان طبیعي حق دی. انسان باید په دنیا کې د خپلې خپلواکۍ چوکاټ وپیژني. هم باید خپله خپلواکي وساتي او هم باید د نورو په خپلواکۍ باندې تیري و نه کړي.<br>د بشر د حقوقو په اعلامیه کې هم راغلي دي چې انسان په ټولنه کې له یوبل سره مساو ي حقوق لري او باید ورته پاملرنه وشي.لازمه ده چې هیڅوک د چا خپلواکۍ ته زیان ونه رسوي.<br>زموږ د هیوا د په اساسي قانون کې(۱۳۸۲کال) هم ازادۍ ته په درنښت کتل شوي او په ټولنه کې یې د هیواد هر وګړي ته دغه طبیعي حق ورکړی دی. د ټولنې د وګړو ترمنځ یې هر ډول توپیر له منځه وړی او منع کړی دی. داسلام دین هم دتوپیر له کولو څخه منعه کړي ده .<br>خوکله کله داسې کیږي چې یو د زور ښښتن او د وخت زبرځواک د نورو په خاو ره باندې تیري ته زړه ښه کړي او ور باندې برید وکړي، لکه د تاریخ په او ږدو کې چې زموږ په هیوا د باندې څوځلې بریدونه شوي، خو په مقابل کې زموږ ولسونو ملي یووالي درلوده او خپله خپلواکي یې ور څخه ترلاسته کړي چې په ۱۹۱۹کال کې د امیرامان الله خان په مشری زموږ ولس د دهغه وخت له بهرني زبرځواک څخه د توري په زور خپله خپلواکي ترلاسه کړه چې هرکال د اسد په ۲۸نیټه د هیواد د خپلواکۍ ورځ په پرتمینو مراسموسره لمانځو او خپل ځوان نسل ته د خپلواکۍ دغه تاریخي ورځ یوځل بیا ور یادوو چې ځوان نسل مو له هیواد او خلکوسره مینه پیدا کړي. |

# پنځمه لسم لوست

## د تدریس لاربنود پلان

## د تدریس وخت: د او نیٔ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د ماشوم حقونه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به ماشومان وپیژندلای شي.<br>- دماشومانو په حقونو به وپوهیدلای شي.<br>- له ماشومانو سره به یې مینه پیدا او زیاته شي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څوانګیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- په تاسوکې به څوک د ماشومانو حقونه پیژني. |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونوورروسته په څولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- یو زده کوونکي دې ووایي چې ماشوم چاته وایي او بل دې دهغه په حقونوخبرې وکړي.<br>- په څوزده کوونکو د لوست په مفهوم خبرې وکړئ.<br>- یوزده کوونکی دې بل زده کوونکي ته یوه جمله ووایي او بل دې پرتختې ولیکي او بیا دې ولولي، که تیروتنه یې کړې وي، هغه ورته سمه کړئ.<br>- څو زده کوونکي دې په دې هکله خبرې وکړي که چېرې ماشوم ته حقوق ورنه کړل شي څه به وشي؟<br>- یو زده کوونکی دې تختې ته ولاړشي د(ماشوم حقوق )دوه کلمې دې پرتختې ولیکي او نور زده کوونکی دې په دې هکله یوه یوه جمله ووایي او هغه دې پرتختې ولیکي بیا دې وروسته یو زده کوونکی پرتختې لیکل شوي جملې ولولي.<br>- څوکسه دې ووایي چې ماشومان په خپلو کورنیو باندې څه حقوق لري؟<br>زده کوونکي دمتن په چوپه خوله ولولي او څوعام نومونه دې په خپلو کتابچوکې په جملو کې وکاروی او بیا دې ولولي، نور زده کوونکي دې پرې فکر وکړي که سمه نه وي بیا دې په سم ډول ووایي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکوڅخه د لوست دزده کړې په هکله پوښتنې و کړئ، لکه:<br>- ماشوم په خپله کورنۍ څه حقونه لري، نومونه دې ولیکي. |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې دماشوم دحقونوپه هکله څوکرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | د انسا ن ژوند له زیږیدنې څخه پیلیږي او له هماغه پیل څخه دحقونو درلودونکی دی. |

| | |
|---|---|
| له دې امله چې په خپل ژوندانه کې له ستونزو سره مخ نشي او په ژوندانه کې بريالی وي، لازمه ده چې له هماغه کوچنيوالي څخه دکورنۍ، ښوونځي او دولت له خوا ورته حقوق ور کړل شي چې د خپلو حقوقو په راو ړلو سره د کورنۍ او ټولنې د خدمت وړ وګرزي.<br>ماشوم د خپلې کورنۍ او ټولنې په غيږ کې د ژوندکولو، خوراک، لباس جسمي او رواني روغتيا، دزده کړې او پالنې، جسمي او ذهنې انکشاف حق لري.<br>ماشوم بايد د هر ډول توپير، زور او فشارڅخه وساتل شي او په يوه ارامه فضا کې ژوند وکړي او وروزل شي. ځکه چې نننۍ ماشوم دراتلونکې ټولنې جوړوونکی دی اوستر مسؤوليتونه ورته سپارل کيږي.<br>نن سبا په ټوله نړۍ کې په تيره بيا ددريمې نړۍ په هيوادونوکې ماشومان او تنکي ځوانان له حقونوڅخه بې برخې دي او له زياتومشکلاتوسره مخ دي چې د هغوی په روح او روان باندې يې ناوړه اغيزې کړي دي. په اوږدو کلونوکې د ماشومانوحقونوته پاملرنه نه ده شوې او اوس هم په بيلابيلوبڼو د هغوی حقوق تر پښولاندی کيږي.<br>خوله نيکه مرغه نن د کورنيو، نړيوالې ټولنې او دولتونو له خوا دماشوم حقونو ته توجه شوي ده. ملګروملتونو دماشوم د حقونود تامين لپاره په ٤١ مادوکې قانون تصويب کړ او هر هيوادېې مکلف کړی دی چې د ماشوم ژوندانه ته او دهغه جسمي او روحي انکشاف ته پام وکړي.<br>پدې قانون کې له ١٨ کلنۍ څخه د کم عمر درلودونکي ماشوم بلل کيږي. دهغوی دجسمي او روحي ودې او انکشاف لپاره کورنۍ او دولتونه موظف شوي دي. پدې کنوانسيون کې غوښتنه شوي ده چې د ماشوم د حقونود تامين لپاره عملي ګامونه پورته شي. د کنوانسيونه په هره ماده کې دماشوم حقه حقونوته پام شوی دی چې دلته يې ځومادې راو ړو:<br>دويمه ماده: دتوپير مخنيوي: په دې کنوانسيون کې حقوق له توپير پرته په ټولوماشومانوپورې اړه لري او دولتونه بايد د هرډول توپير په مقابل کې د ماشومانو ملاتړ وکړي.<br>دريمه ماده: د ماشومانو ګټې: په هر اقدام کې بايد د ماشومانو ګټې په پام کې ونيول شي. که چيرې موراو پلار او د هغوی سرپرست ورته نظر نه کوي، دولتونه بايد له ماشومانوڅخه جدي څارنه او ملاتړ وکړي.<br>٢٧ ماده: هرماشوم حق لري د ژوندانه له داسې سطحې څخه برخمن شي چې دهغه د جسمي، ذهني، رواني او اجتماعي ودې ضمانت وکړي.<br>٣١ ماده : دژوندانه سطحه: دهغه ماشوم حالت چې د دولت له خوا کورنۍ ته سپارل کيږي، بايد په کلکه ارزيابي شي.<br>له دې امله بايد دماشومانوحقونوته پاملرنه وشي. دولتونه بايد د ماشومانولپاره د تفريح زمينه برابره کړي، ورزشي کلپونه اوسالم تفريحي پروګرامونه جوړ کړي. | |

## شپاړسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نیم درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **سوله** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکی به سوله وپيژندلای شي.<br>- د لوست متن به ولوستلی او وليکلي شي.<br>- له سولې سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | له زده کوونکوځخه انگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- که سوله نه وي څه به رامنځته شي؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته په ځولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي دې يوځل متن په چوپه خوله ولولي، ستونزمنې برخې دې په نښه کړي تاسو يې ورته حل کړئ.<br>- څوزده کوونکي دې ووايي چې سوله څه معنا لري؟<br>- څو زده کوونکي دې دسولې په باره کې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږونيسي.<br>- يو زده کوونکی دې تختې پورته شي، پرتختې دې دسولې کلمه وليکي او نور زده کوونکي دې دسولې په باره يوه يوه جمله ووايي او هغه دې وليکي.<br>زده کوونکي په دوو ډلوباندې وويشئ، يوه ډله دې دسولې په هکله او بله ډله دې د جنگ دزيانونو په هکله نظرونه شريک او په کاغذ کې دې وليکي او بيادې دټولگي په مخکې دځپل استازې پواسطه ووايي. |
| **د لوست ارزونه** | د لوست دزده کړې په هکله له څو تنو ځخه پوښتنې و کړئ، لکه:<br>- سوله څه ته وايي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې دسولې په هکله څوکرښې وليکي. |
| **اضافي معلومات** | د سولې کلمه چې په عربي او دري ژبوکې ورته صلح وايي او په پښتو ژبه کې دغه کلمه پښتو شوي ده، نن سبا يې نړيواله اړتيا رامنځته کړي ده. سوله له کور او کلي ځخه نيولې ترهيواد او هيوادونو پورې رسيدلې او ولسونو ورته اړتيا لري.<br>چيرې چې سوله اوسوليز ژوند روان وي، هلته ويره او ترس له منځه ځي او خلک د يووالي په فضاکې له يوبل سره ژوند کوي. په داسې ټولنو کې دژوند پراخه سوکالي رامنځته کيږي او |

ژوند د نیکمرغۍ خواته حرکت کوي او له سکون څخه ووځي.
د نړۍ په کومو هیوادونو کې چې د جګړو اورونه بل وي، هلته د ژوند خواږه اوسوکالي له منځه ځي او د ژوند هرشیبه د مرګ په انتظار کې تیریږي. په داسې شرایطوکې د ټولو له خولې د سولې د رامنځته کولو غږ راپورته کیږي او کله چې د دخیلو ډلو ترمنځ سوله وشي، ولسونه ساه وباسي او د آرمۍ احساس وکړي.
موږ وایو چې په یوه کورنۍ، کلي، ولس او ټولنه کې سوله اړینه ده چې د ښکیلو خواو و ترمنځ وشي، خوپه دې ځان پوهول پکار دي چې سوله د ښکیلو خواو و ترمنځ څنګه منځته راتللی شي؟
سوله معمولاً د دریم شخص او یا اشخاصو له خوا چې د دواړو خواو و ترمنځ بې طرفه وي رامنځته کیدلی شي او هم په دې شرط چې د سولې رامنځته کوونکي او یاکه ووایو جرګه ماران د دواړو خواو و له خوا څخه منل شوي وي او د منځګړو اشخاصو پریکړه ورته منظور وي، نو بیا هله د ښکیلو اړخونو ترمنځ سوله منځته راځي.
راځئ چې په ټولنه کې د سولې په باره کې د روغتیا له یوې معقولې څخه کار واخلو او هغه دا چې وقایه ترتداو ی بهتره ده نو ویلای شو چې سوله تر جګړو بهتره ده. له څنګه چې د روغتیا په برخه کې وقایې ته ارزښت ورکوي او زیار ایستل کیږي چې ناروغه نشي، نوموږ هم باید هڅه وکړو چې تل په سوله کې ژوند وکړو او هرلانجه مخکې له دې په جګړه بدله شي، په خپل منځ کې د خبرو او جرګو له لارې حل کړو او په خپل کلي، کور او ولس او بالاخره په هیو اد کې سوله ییز ژوند وکړو او لکه د نورې نړۍ په شان د علم او پرمختګ په لاره روان شو او د خپل کلیوال او هیوادوال ژوند ته په ارزښت قایل شو او یو بل ته درناو ی ولرو.

## او وه لسم لوست

## د تدریس لاربنود پلان

## د تدریس وخت: د او نیۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **جرگه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکی به جرگه وپیژندلای شي.<br>- متن به ولوستلا ی او ولیکلای شي.<br>- له جرگوسره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | د لوست دارزونې لپاره له زده کوونکو انگیزوي پوښتنې وکړئ:<br>- د متن تصویر ورته وښیي چې خپل نظر بیان کړي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته په خولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br><br>- یو زده کوونکی دې پورته شي، د جرگې په هکله دې خبرې وکړي او نور دې و رته غوږ ونیسي.<br>- بل زده کوونکي دې پورته شي له جگړوڅخه دځان ژغورلو په هکله دې خبرې وکړي او نور دې ورتـه غـوږ ونیسي.<br>- اوس یو زده کوونکي تختې ته پورته کړئ چې دجرگې په اړه دیویو زده کوونکي نظر ولیکي او بیادې بل زده کوونکي هغه ولولي.<br>- یو زده کوونکي دې بل زده کوونکي ته املا ووایي او بیا دې هغه ولیکي.<br>- په څو زده کوونکو باندې د دودونو په هکله محاوره و کړئ. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې و کړئ لکه:<br>- جرگه څه ته وایي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کور کې دجرگو دگټو په هکله څوکرښې ولیکي او په بل درسي ساعت کې ووایي. |
| **اضافي معلومات** | افغاني ټولنه ډیر سپیڅلي او درانه دودونه لري چې یو له هغو دودونو څخه جرگه ده. جرگه په تاریخي لحاظ په افغاني ټولنه کې له خورا لرغونتیا څخه برخمنه ده. تاریخونه لیکي چې لر غونو اریا یانو به خپلې ټولنیزې لویې او کوچنۍ مسألې د جرگو او مرکو له لارې حل کولې. اریایانو دوه ډوله جرگې درلودې چې یوې ته یې (سیمتي) او بلې ته یې ( سبها) ویله. یو ډول جرگه د سبها وه. د سبها جرگې دنده دکوچنیو او وړو مسألو حل و، |

لکه: د کور او کلي د مسألو حل.
بله يې سيمتي جرگه وه. ددې جرگې د نده د هيواد په کچه وه. يعنې هغه کو مې پريکړې به چې دهيواد په سطحه کيدې لکه: د مشر ټاکل، له هيواد څخه ددفاع پريکړه او ياهم کوم بل لوی کار چې په ناڅا پي ډول به دهيواد په سطحه را منځ ته کيده، د سيمتي جرگې د غړو په وسيله به حل کيده.
نو ويلی شو چې افغانانو دغه دواړه دودونه تر اوسه کلک ساتلي دي او له دواړو څخه په خپل خپل ځا ی کې کار اخلي. د کو چنيو جرگو شمير خو نه معلو ميږي ځکه چې په کليو ډيرې لويې او وړې ستونزې را منځ ته کيږي او بيا د جر گو په وسيله حل کيږي.
خو هغه څو لوې جرگې چې د افغانستان په وياړلي تاريخ کې را منځ ته شوي نومونه يې په دې ډول دي. لومړی جرگه په ( ۱۱۵۰) هجري قمري د کوکران په کلي کې جوړه شوې وه. دويمه پر(۱۱۱۹) هجري قمري کال په مانجه نومي ځای کې او دريمه په همدغه کال په قندهار کې جوړه شوې وه. څلورمه جرگه په ( ۱۷۴۷ ) هجري قمري کال د مزار د شير سرخ لويه جرگه وه چې لوی امپراطور احمد شاه بابا يې د پاد شاه په توگه اعلان کړ. پنځمه لويه جرگه په ( ۱۸۴۱ ) م کال د ملي مجاهيدينو لويه جرگه وه. شپږمه لويه جرگه د اميرشيرعلي خان په واکمنی د و خت لويه جرگه. اوومه د اميرحبيب الله خان دوخت لويه جرگه چې افغانستان يې د لو مړی نړيوالې جگړې پرمهال بې طرفه اعلان کړ.
همدارنگه د افغانستان دخپلواکۍ اخيستونکي پادشاه امير امان الله خان د واکمني پرمهال څلور جرگې جوړې شوې دي. له امان الله خان څخه وروسته د نادرخان د واکمنۍ پرمهال هم لوې جر گې جوړې شوي دي. له نادر خان څخه وروسته بيا د اعليحضرت محمد ظاهر شاه د واکمنۍ پرمهال لومړی جرگه په ( ۱۹۴۱) م کال کې د دويمې نړيوالې جگړې په خاطر جوړه شوې وه. دويمه دويمه لويه جرگه په ۱۳۴۳ لمريز کال کې د نوي اساسي قانون د تصويب لپاره جوړه شوې وه. همدارنگه محمد ظاهر شاه له واکمنی نه وروسته تردې دمه نورې لوې جرگې هم جوړې شوي دي چې هر يوه يې په خپل ځای کې ځانگړی اهميت او ارزښت لري

## اتلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نی‌ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | پر حیواناتو زړه سوی |
|---|---|
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- د لوست په زده کړې به دحیواناتو ګټې وپیژندلای شي.<br>- لوست به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- له حیواناتوسره به مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکوڅخه انګیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- تاسوکله په حیواناتوزړه سوی کړی دی؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته په ځولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- یو زده‌کوونکی دې پورته شي، نورو زده‌کوونکوته دې د لوست له مخې څو لغتونه ووایي او هغو ی دې په جملو کې وکاروي او بیا دې یو زده‌کوونکی په ټولګي ووایي، نور زده‌کوونکي دې د هغه تیروتنه ورته ور سمه کړي.<br>- څو زده‌کوونکي دې د لوست متن ووایي. که څوک څه ستونزه لري، له ښوونکي دې پوښتنه وکړي.<br>- څو زده کوونکي دې دټولګي په وړاندې په وارسره د لوست دمفهوم په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- یو زده کوونکی دې تختې ولاړشي، نورزده کوونکي دې په وارسره د حیواناتو د ګټوپه هکله یوه یوه جمله ورته ووایي او هغه دې پرتختې ولیکي او بیا دې ووایي. که یې تیروتنه کړې وه، بل زده کوونکي دې ورته سمه بڼه ولیکي.<br>- یو زده کوونکی دې تختې ولاړشي، نور زده کوونکي دې پرحیواناتوباندې دزړه سوي په هکله یویو نظر ووایي او هغه دې ولیکي او بیادې ووایي. که یې په لیکلوکې تیروتنه کړې وه، بل زده کوونکی دې ورته سمه کړي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکي د لوست دزده کړې په هکله پوښتنې وکړي، لکه:<br>- له حیواناتو څخه کومې ګټې ترلاسه کولای شو؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې په حیواناتو باندې دزړه سوي په هکله څو کرښې ولیکي او بیا دې په بل درسي ساعت کې ووایي. |

# نولسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نیمې درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د یووالي ګټې** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به دسپين ږيري په کيسه وپوهيږي.<br>- د کيسې په مفهوم به پوه شي.<br>- له يووالي او اتفاق سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوى توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انګيزوي پوښتنې** | له زده کوونکو انګيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- په تاسوکې دچاکومه کيسه زده ده؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته په څولايقو زده کوونکو باندې نوى متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- په زده کوونکو متن په چوپه خوله ولولئ اوستونزې ورته حل کړئ.<br>- څو زده کوونکي دې ديووالي په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- څو زده کوونکي دې ددې کيسې په ارزښت باندې خبرې وکړي.<br>- څو زده کوونکي دې په دې هکله خبرې وکړي چې له کيسې څخه يې څه زده کړل.<br>- يو زده‌کوونکى دې په ټولګي کې پورته شي، بل زده‌کوونکى دې تختې ته پورته شي، لومړي زده‌کوونکى دې ورته څو لغتونه ووايي او هغه دې په جمله‌کې وکاروي، بيا دې ولولي او نور زده‌کوونکي دې دهغه تيروتنه ونيسي او په خپله دې وليکي.<br>- يو زده کوونکى دې دهغه زده کوونکي دژوند دراتلونکو ستونزو په هکله خبرې وکړي چې لوست نه وايي او کورنۍ دندې نه ليکي.<br>- په څوزده کوونکو محاوره وکړئ.<br>څو زده کوونکي دې ووايي چې له دې وروسته به خپل ورځني کارونه په څه ډول عيار کړي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکوڅخه د لوست دزده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- دسپين ږيري له کيسې څخه مو څه ګټه ترلاسه کړه؟ |
| **کورنۍ دنده** | هر زده کوونکى دې په کورکې په خپله کتابچه کې يوه کيسه وليکي او په بل درسي ساعت کې دې په ټولګي کې ووايي. |
| **اضافي معلومات** | ملي يووالى د هيواد د قومونو او ځوانانو ترمنځ د رښتينې ملي پيوستون معنا لري. څومره |

| | |
|---|---|
| چې په یوه هیواد کې د ټولو پرتو میشتو قومونو ترمنځ د یووالي روحیه پیاو ړې وي، په هماغه اندازه نه یوازې دا چې د دوی د خاو رې د نیولو د ښمنان پرې کامیاب کیدای نشي بلکې د خپل هیواد په دننه کې هم څوک نشي کولای چې د پرتو قومونو ترمنځ د خپلو موخو د سرته رسولو لپاره ترې کار واخلي او ملي یووالی له منځه یوسي.<br>که موږ د خپل تاریخ پاڼې راواړو دا به راته څرگنده شي چې زموږ په هیواد باندې د پردیو برید گرو له خوا ډیر بریدونه شوي دي خو دا چې پرتو قومونو په خپل منځ کې پوره یووالی درلوده، په یوه غبږ پورته شوي دي او په پوره میړانه یې د خپل هیواد ساتنه کړې ده، موږ په خپل ویاړلي تاریخ کې د هیواد له بیلابیلوسیمو څخه اتلان او غازیان لرو چې دولسونو په یووالي سره یې دخپلواکی بیرغ رپاند ساتلی دی.<br>په یووالي او اتفاق کې وروري پرته ده. خدای (ج) هم د انسانانو په یووالي او وروری باندې باندې خوښیږي او داکار زموږ شرعي وجیبه هم ده. یووالی هم زموږ د دین له پلوه او هم په یوه ټولنه کې د ټولنیز نظم د رامنځته کولو لپاره اړین دی چې په درنښت سره ورته وکتل شي.<br>چیرې چې یووالی او اتفاق نه وي، هلته به دښمني وي، یو بل ته به کندې کیندي او د ژوند ښیرازه به یې له منځه ځي او د هیواد دښمنان به شومي موخې عملي کوي.<br>کله چې په یوه ټولنه کې د یو والي او اتقاق روحیه له منځه ځي، هلته د پردیو لاسونو لاسوهنه رامنځته کیږي او په هغې ټولنه کې دیواتفاق روحیه کمیږي او په خپلو کې دیو بل وینو ته تږې کیږي.<br>زموږ د گران هیواد ټولو قومونو او ولسونو تل د تاریخ په او ږدو کې د ملي یو والي او ورور ولی په سپېڅلې سمبالې روحیې ژوند کړی دی. انشاالله تر څو چې دا هیواد وي، ژوند به کوي. په دې هیو اد کې کوم وگړي چې ژوند کوي، ټول افغانان دي او افغانان تل د ملي یووالي او ورورولی سره مینه لري او په دغه ورورولی او یووالي باندې ویاړي. په دغه ملي یووالي سره کیدای شي، زموږ د هیواد ټولې ملي شتمنی خو ندي او هم په خپلو کې دوروری فضا ساتلی شو.<br>درانه ښوونکي باید زده کوونکوته د ملي یووالي په برخه خبرې وکړې او د بیلابیلو قومونو اوسیدونکي دوروری لپاره وهڅوي چې وکړای شي هیواد په گډه د علم او پوهې په واسطه آباد اوسمسور کړای شي او په امن کې یې وساتي. | |

## شلم لوست

## د تدریس لاربنود پلان

## د تدریس وخت: د او نی درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د مشرانو د مشورو منل |
| --- | --- |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکی به د مشرانوحقوق وپیژني.<br>- لوست به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- له مشرانوسره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | له زده کوونکوڅخه انگیزوي پوښتنې وکړئ چې فکر یې نوي لوست ته راو گرزي. |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته په څولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي دې یوځل متن په چوپه خوله ولولي، ستونزمنې برخې دې په نښه کړي تاسویې ورته حل کړئ.<br>- څوزده کوونکي دې د مشرانو د خبرو د منلو د گټو په باره کې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ و نیسي.<br>- **څو زده کوونکي دې محاوره وکړي.**<br>- زده کوونکي په دوو ډلوباندې وویشئ. یوه ډله دې دمشرانو د خبرو د منلو په هکله او بله ډله دې له مورسره د مرستې په هکله د خپل راتلونکي پروگرام په هکله نظرونه شریک او په کاغذ کې دې ولیکي او بیا دې د ټولگي په مخکې د خپل استازې پواسطه ووایي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکوڅخه د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- مشران په موږ باندې څه حقونه لري؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د مشرانو د خبرو د منلو په هکله څوکرښې مقاله ولیکي. |

**یوویشتم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د او نۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **تاریخي شتمنۍ** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به تاریخي شتمنۍ وپیژندلای شي.<br>- د لوست متن به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- له معلوماتي لوستونو سره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زد کوونکوڅخه څوانګیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په فکر د تاریخي شتمنیوساتل به څه ګټه ولري؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته په څولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- څو زده کوونکو دې په لوست باندې خبرې وکړي.<br>- څوزده کوونکي دې ووایي چې شتمني څه معنا لري؟<br>- څو زده کوونکي دې پردې خبرې وکړي چې تاریخي شتمنې کومې ګټې لري؟<br>- یو زده کوونکی دې پورته شي، بل زده کوونکي ته دې د متن یو پاراګراف ووایي او هغه دې پر تختې ولیکي. نور زده کوونکي دې هغه ولولي. که یې تیروتنه درلوده، هغه ورته سمه کړئ.<br>- یو زده‌کوونکی دې د تاریخي شتمنیو په باره‌کې خبرې وکړئ. نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- زده کوونکي دې په خپلو کتابچوکې لاندې جملې ته انکشاف ورکړي:<br>- موږ ډیرې تاریخي شتمنۍ لرو.<br>بیا دې څوکسه خپلې لیکل شوي جملې په ټولګي کې ولولي او نور دې ورته غوږونیسي.<br>- که وخت و، ښوونکی دې همداسې ورته فعالیتونه په زده کوونکو باندې سرته ورسوي. |
| **د لوست ارزونه** | ښوونکی دې د لوست د زده کړې په هکله له څو تنو څخه پوښتنې وکړي لکه:<br>- تاریخي شتمنۍ څه ته وایي؟ |
| **کورنۍ دنده** | په کورکې دې دتاریخي شتمنۍ دګټو په هکله څوکرښې ولیکي. |

| | |
|---|---|
| **اضافي معلومات** | په هر هیواد کې یو ډول شتمنۍ طبیعي وي او بل ډول شتمنۍ کلتوري وي. د هغه هیواد خواره ولسونه له دواړو شتمنیو څخه ساتنه کوي.<br>په یوه هیواد کې طبیعي شتمنۍ هغه دي چې په طبیعي ډول خدای (ج) پیدا کړې وي او په جغرافیوي ویش کې د هغه هیواد په خاو ره کې وي او لاس نه خوړلي وي. یعنې په خپل حال پرتې و ي.<br>دویم ډول یې کلتوري شتمنۍ دي. کله چې په طبیعي شتمنیو باندې د انسان لاس ولګیده او انسان د پوهې په اندازه باندې ور باندې کار وکړ، دا شتمني خپل طبیعي توب له لاسه ورکوي په کلتور ي شتمنۍ باندې او ړي.<br>دیوه هیواد په اوسیدونکوباندې لازمه ده چې له دواړو شتمنیو څخه ساتنه وکړي. له دې امله په بهرنیوهیوادونو کې د دواړو شتمنیو دساتلو له پاره ځانګړي پاملرنه کوي.<br>زموږ په هیواد کې لا تر اوسه پورې له کلتوري شتمنیو څخه طبیعي شتمنۍ ډیرې دي او تراوسه پورې یې لاس خوړلی نه دی. ځکه چې موږ لا تراوسه پورې دې اندازې ته رسیدلي نه یو چې خپلې لاس نه خوړلې شتمنۍ دعلم او پوهې په برکت کار پرې وکړو او لاس پرې ووهو چې په کلتوري شتمنۍ بدلې او د ټولنې په ګټه تمامې شي.<br>اوس په هیواد کې ځوانانو ته سترګې او ړې چې لوړې زده کړې وکړي او د خپل علم په برکت یې راباسو. بله ډیره مهمه خبره داده چې باید دولت ددې شتمنیو ساتنه وکړي چې څوک یې د شخصي ګټولپاره غلا نه کړي. موږ باید دوه کارونه وکړو: یوداچې خپلې طبیعي شتمنۍ وپیژنو او هغه په کلتوري شتمنیو بدلې کړو او له بلې خوا هغه وساتو او دملي سرمایې په توګه ورته وګوروچې د ټولنې په ګټه تمامې شي او ټول ملت ترې د دولت له لارې کار اخلي نه دا چې هر څوک په خپل سر له طبیعي او کلتوري شتمنیو څخه کار واخلي. |

# دوه ویشتم لوست

## د تدریس لاربنود پلان

## د تدریس وخت: د او نیۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د ځارویو ګټې |
|---|---|
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به ځاروي وپيژني.<br>- متن به ولوستلا ی او وليکلای شي.<br>- له ځارويو سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يو کسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انګيزوي پوښتنې** | لوست ته د داخيليدو په موخه له زده کوونکو څو انګيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په فکر د ځارويو ساتل څه ګټې لري؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته په څولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br><br>- زده کوونکي دې په ټولګي کې په خپلوکتابچوکې دځارويو دګټو په هکله په وار سره يوه يوه کرښه وليکي. بيا دې څوتنه د تختې پرمخ کې ولولي.<br>- يو زده کوونکی دې د کتاب له مخې يوکرښه بل زده کوونکي ته ووايي او هغه دې پرتختې وليکي او بيا دې ولولي که يې تيروتنه کړې وه، بل زد ه کوونکی دې ورته حل کړي.<br>-په زده کوونکو باندې محاوره وکړئ.<br>-څو زده کوونکي دې ووايي چې مهرباني څه معنا لري اوبيا دهر زده کوونکي ځواب نورو زده کوونکوته وړاندې کړئ ورته وو ايئ چې داځواب سم دی که نه ؟<br>- يو زده کوونکی دې په ځارويو باندې د مهربانۍ په هکله خبرې وکړي چې په څه ډول چلند ورسره وکړو؟<br>- يو زده کوونکی د تختې ته ولاړشي. د يو اهلي حيوان نوم دې پرتختې وليکي او بيا دې د نورو زده کوونکو نظرد نومړي حيوان د ګټو په باره کې پرتختې وليکي. بيا دې ولولي. نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- څو زده کوونکي دې له ځارويو سره د مرستې د ګټو په هکله خبرې وکړي، ښوونکی کولای شي ورسره مرسته وکړي. |

| | |
|---|---|
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې و کړئ، لکه:<br>- اهلي څارويو کومو څارويو ته وايي، نومونه يې واخلئ؟ |
| **کورنۍ دنده** | په کور کې دې د هغه څاروي په هکله ځو کرښې وليکي چې موخوښيږي. |

# درويشتم لوست

## د تدريس لاربنود پلان

## د تدريس وخت: د او نۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **سابه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- پاک سابه به وپيژني.<br>- متن به ولوستلای او وليکلای شي.<br>- له پاکو سبو سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | لوست ته د زده کوونکو د ور ننوتلو په موخه انگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ستاسوپه فکر دپاکو سبو خوړل به څه گټه ولري؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته په ځولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي دې متن ولولي. په متن کې راغلي نومونه دې په خپلوکتابچوکې وليکي او په جملو کې دې وکاروي. بيادې دبيلگې په توگه يوه جمله پرتختې وليکي او هغه دې ولولي.<br>- څو زده کوونکي دې په وارسره دپاکو سبو په هکله په ټولگي کې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونيسي او تاسو هم ورسره مرسته کولای شئ.<br>- په زده کوونکو باندې محاوره وکړئ.<br>- زده کوونکي په دوو ډلووويشئ. يوه ډله دې دپاکو سبو په هکله او بله ډله دې د ناپاکو سبود خوړلو د زيانونو په هکله نظرونه ورکړي او يو تن دې وليکي بيا دې هغه استازی د ټولگي په مخکې ولولي، نور دې ورسره خپل نظر شريک کړي.<br>- يو زده کوونکی دې پورته شي. بل زده کوونکي ته دې دوه کلمې ووايي او هغه دې پرتختې په جمله کې وکاروي.<br>- يو زده کوونکی دې له بل څخه د کتاب دتيرو لوستونو په هکله پوښتنه وکړي او بل دې ورته ځوابونه ورکړي.<br>که وخت و، تاسو ورته د کتاب د فعاليتونو په ډول نور فعاليتونه ورکړئ چې سرته يې ورسوي. |
| **د لوست ارزونه** | ښوونکي دې له څو زده کوونکوڅخه د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړي، لکه:<br>- ناپاکه سابه څرنگه پاک کړو؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کور کې دپاکو سبو دگټو په هکله څوکرښې وليکي. |

## څلېر ويشتم لوست

## د تدريس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د او نیۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **دوستي** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به د دوستۍ کول وپيژني.<br>- متن به ولوستلای او و ليکلای شي.<br>- له دوستۍ سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انګيزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څخه انګيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په فکرکه د خلکو په منځ کې له يو بل سره دوستي نه وي، څه زيان به ورته ورسيږي؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونوروسته په ځولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکی دې متن په چوپه خوله ووايي او دمتن دنووکلموپه معنا او مفهوم دې ځان پوه کړي.<br>- څوزده کوونکي دې ددوستۍ په مفهوم په هکله خبرې وکړي.<br>- زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي. يوه ډله دې ددوستۍ دګټو په هکله خپل نظرونه سره شريک کړي او بل ډله دې په خلکو کې د دوستۍ د نه کولو د زيانونو په هکله خپل نظرونه سره شريک کړي. د هرې ډلې استازی دې خپل ليکل شوي نظرونه د ټولګي په مخ کې ولولي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:- دوستي څه ته وايي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې ددوستۍ دنه کولو په هکله څوکرښې وليکي. |

## پنځه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **هیواد پالنه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به هیواد پالنه وپیژني.<br>- متن به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- زده کوونکي به له هیواد پالنې سره مینه او علاقه پیدا کړي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | لوست ته دزده کوونکو دپام را اړولو په خاطرانگیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- هیواد پالنه څه ته و ایي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته په ځولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- یو زده کوونکی دې پورته شي، پرتختې دې یوه جمله ولیکي او بل زده کوونکی دې د هغې په ارتباط بله جمله ولیکي.<br>- وروسته دې څو زده‌کوونکي متن په مناسب او از په ټولگي کې و لولي، تاسو ور سره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي دې کتاب بند کړي، په دوو ډلو یې وویشئ. هره ډله دې د هیواد پالنې په هکله خپل نظر ولیکي او بیا دې د ډلې استازی په ټولگي کې وو ایي.<br>که وخت و، په زده کوونکو دیوې موضوع په هکله محاوره وکړئ. |
| **د لوست ارزونه** | ښوونکي دې له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړي، لکه:<br>هیواد ستاسو په نظر څه ته وایي، یومثال یې ووایئ. |
| **کورنۍ دنده** | هرزده کوونکی دې د کتاب یو پاراگراف ولیکي او دوه کرښې دې له ځانه ورسره یوځای کړي. |
| **اضافي معلومات** | هیواد هغه خوږه کلمه او هغه خوږه غېږ ده چې موږ پکې زیږیدلي یو او موږ پکې خپوړې کړي دي.<br>په پښتو کې یو متل دی چې هر چا ته خپل وطن کشمیر دی. که پردې هیوادونه هرڅومره د انسان د پوهې په واسطه ښکلي او اباد شوي وي او هرڅومره طبیعي ښکلا ولري، بیا هم هر چا ته خپل وروسته پاتي هیواد ښکلی او په زړه پورې دی.<br>بهرنیو هیوادونو ته دا ښکلي او آباد هیوادونه کومه ډالۍ ور کړل شوي نه ده بلکې دخپل علم او پوهې په واسطه او د خپل یووالي او زیار په پایله کې یې اباد کړي دي او نن سبا پکې ارامه ژوند تیروي.<br>زموږ هیواد هم ښکلی دی. موږ هم ښکلي شتمنۍ لرو او دا ټولې دپوهو او باتجربه انسانانو لاس او کار ته اړتیا لري. هیواد د هیوادپالنې په مینه او پوهه سره ودانیږي. د هیواد د ودانولو له پاره یووالي ته اړتیا ده چې لومړی په هیواد کې سره د ورونړو په څیر ژوند وکړو او د هیو اد هره سیمه خپل سیمه وبولو او د هیواد هر انسان خپل ورور وبولو او بیا ورسره د علم په گانړه ځانونه سنبال کړو. |

## شپږ ویشتم لوست

## د تدریس لاربنود پلان

## د تدریس وخت: د او نی‌ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **انساني حقونه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- په انساني حقونو به وپوهيږي.<br>- متن به و لوستلا ی او و ليکلای شي.<br>- له انساني حقونو سره به مينه پيدا کړي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انګيزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څخه انګيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ستاسو په فکر انسان څه حقونه لري؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته په څولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- څو زده کوونکي دې دانساني حقونو په باره کې خبرې وکړي.<br>- زده کوونکي په دوو ډلو باندې وويشئ. یوه ډله دې د انساني حقونو په هکله او بله ډله دې په ټولنه کې دانساني حقونو د نه ورکولوپه باره کې خپل نظرونه وليکي او بيا دې دهغوی استازی ووايي. نور دې ور باندې خبرې وکړي.<br>- یو زده کوونکی دې پرتختې یوه کلمه وليکي. تاسو ورته د هغې د ښه ليکلو او تيروتنې په هکله لارښوونه وکړئ او ورته يې سمه کړئ.<br>- په زده کوونکو باندې ديوې موضوع په باره کې محاوره وکړئ<br>- یو زده کوونکی دې بل ته یوه کلمه ووايي او بل زده کوونکی دې پرتختې وليکي او په جمله کې دې وکاروي.<br>یو زده کوونکی دې پرتختې ( انسان )کلمه وليکي او نور زده کوونکي دې دانسان په هکله یوه یوه جمله ووايي. |
| **د لوست ارزونه** | ښوونکي دې له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړي، لکه:<br>- دانسان حقونه څه شی دي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې د ليک لوست دګټوپه هکله څوکرښې وليکي او په بله ورځ دې په ټولګي کې ووايي. |

## اووه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نیم درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **باران** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به د باران ګټې او زیانونه وپیژني.<br>- د باران لوست به و لوستلای او لیکلای شي.<br>- د باران له زیانونو څخه به ځانونه وساتلای شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څخه څوانګیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>تاسوکله دباران اوسیلابونوزیانونه لیدلې یا او ریدلې دي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته په څولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- یوزده کوونکی دې پرتختې دباران کلمه ولیکي او نورزده کوونکي دې دباران د زیانونوپه هکله یوه یوه جمله ووایي او پرتختې دې ولیکي. بیا دې یوبل زده کوونکی دهغه په لیکنه کې تیروتنه په ګوته کړي او ودې لولي.<br>- څوزده کوونکي دې دباران په ګټوخبرې وکړي او نوردې ورته غوږ ونیسي.<br>- زده کوونکي په دوو ډلو وویشئ. یوه ډله دې دباران دګټو په هکله خپل نظرونه ولیکي او بله ډله دې له باران څخه دځان ساتلو د لارو چارو په هکله خپل نظرونه د خپل استازي په واسطه ولیکي او په ټولګي کې دې ووایي.<br>-په زده کوونکو دیوې موضوع په باره کې محاوره وکړئ.<br>- څو زده کوونکي دې د لوست متن په مناسب او از ووایي او نور زده کوونکي دې ورته ځیر اوسي. |
| **د لوست ارزونه** | ښوونکي دې له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله انګیزویي پوښتنې وکړي لکه:-<br>څوک به ووایي چې تیز باران اوسیلابونه څه زیانونه اړوي. |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې دسیلابونو د زیانونو هکله څوکرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | باران دخدای رحمت دی.که باران نه وي ټولې ځمکې به شاړې شي. ټول ژوندې مخلوقات به له تندې مړه شي او په دې نړۍ کې به ژوند پای ته و رسیږي. خدای(ج) دټولومخلوقاتو خالق دی او هغه ذات پیدا کړي او ژوند یې ورته ورکړي.<br>خدای(ج) د خپلو مخلوقاتو له پاره د او بو رحمت پیدا کړی دی چې دکال په بیلا بیلوموسمونو کې بارانونه او واورې اوري. په بارانونو او واورو باندې ځمکې خړوبه کیږي او په ډنډونو کې ذخیره کیږي او |

| | |
|---|---|
| | که زیاتي شي سیلابونه ترې جوړیږي او له لویو سیندونو سره یوځای کیږي. د باران او واورې او به دي چې دکاریزونو او چینو له لارې هم د خلکو په ګټه تمامیږي، خوکله کله بارانونه دومره ډیرشي چې سیلابونه ترې جوړ شي. دلته باید زموږ خلك او په تیره بیا د زده کوونکي باید په دې برخه کې پوه وي. دتیز باران په وخت کې په خوړونو کې په لارو باندې لاړنه شي. یونږدې جومات او یا دکوم خپلوان کره ولاړشي او کله چې باران غلی شي او یا سیلاب خلاص شي، بیا کولای شي چې خپل کور ته و لاړشي.<br>ښاغلی ښوونکی! دباران دګټو او زیانونو په باره کې زده کوونکوته خبرې و کړئ او زده کوونکي پوه کړئ چې دباران له زیانونو څخه وساتل شي، زده کوونکوته له ټولو طبیعي حوادثوڅخه دخلاصون لارې چارې وښیئ. |

## اته ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د او نیـ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | وزلوبه |
|---|---|
| د زده کړې موخې: پوهنيزې مهارتي ذهنيتي | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړې سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- وزلوبه به وپيژني.<br>- د لوست متن به سم ولوستلای او وليکلای شي.<br>- د هيواد له لوبوسره به يې مينه پيدا شي. |
| انگيزوي پوښتنې | له زده کوونکو څخه ځو انگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسوکله وزلوبه ليدلي ده؟ که موليدلې وي ټولگيوالوته يې ووايئ. |
| د ښوونکي فعاليتونه | - له مقدماتي فعاليتونووروسته په ځولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي. اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي دې متن ولولي او په لوست کې دې هغه جمله وليکي چې هغه يې خوښيږي بيا دې نوموړې جمله دټولگيوالوپه مخ کې پرتختې ولولي.<br>- زده کوونکي په دوو ډلو باندې وويشئ. هر ډله دې په شريکه باندې دوزلوبې دارزښت په هکله يوه يوه جمله وليکي او بيا دټولگي په مخ کې وليکي.<br>- ځو زده کوونکي دې د لوست د ارزښت په هکله خبرې وکړي.<br>- يو زده کوونکی دې تختې ته ولاړشي. بل زده کوونکی دې ورته له متن څخه يوه جمله د املا په توگه ووايي او هغه دې وليکي. که يې تيروتنه درلوده، بل زده کوونکی دې ورته اصلاح کړي. |
| د لوست ارزونه | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پو ښتنې وکړئ، لکه:<br>- څوک به ووايي چې وزلوبه څه ډول لوبه ده؟ |
| کورنیـ دنده | زده کوونکي دې د خپل کلي د لوبو نومونه په خپلو کتابچو کې وليکي او په درسي ساعت کې دې خپلو ټولگيوالوته دهغو لوبونومونه د کتابچې له مخې و اخلي. |
| اضافي معلومات | **وزلوبه**<br>وزلوبه يوه پخوانی دوديزه لوبه ده چې د افغانستان په شمال او شمال شرقي ولايتونوکې د پسرلي او مني په وخت کې تر سره کيږي. ددې لوبې لپاره د نوم ليکنې کوم اصل نشته، هر څوک کولای شي چې په لوبه کې گډون وکړي او له خپل آس سره د لوبې ميدان ته داخل شي او لوبه وکړي. د لوبې قانون داسې دی چې له لوبې يوه ورځ مخکې يو خوسی او يا يوه غټه وزه حلالوي سر او پښې يې په بندونو کې قطع کوي. وزه ياخوس يوه لوی ميدان ته چې په وروستی برخه کې يې يو بيرغ ولاړ وي اچوي. هغه چاته چې په دې لوبه کې گډون کوي، چاپ انداز وايي. چاپ اندازان وزه ياخوسی له ځمکې پورته کوي يوه ټاکلي ځای ته چې دحلال دايره نوميږي، رسوي او هلته يې غورځوي، خونور چاپ اندازان يې ورڅخه په داسې حال کې چې پر آسونو سپاره وي، اخلي او |

خپله يې دحلال دايرې ته رسوي.هر چا چې ورسوو هغه لوبه گټلې ده.

زموږ په وزلوبه ډېراو بډ تاريخ لري. چينايي زاير هيوان تسانگ چې له ميلاد څخه مخکې زموږ دهيواد مرکزي سيمو ته راغلی و هغه ليکلي دي چې کله زه له تخارستان نه بدخشان ته ورسيدم ماسپښين و او په لوی ميدان کې دبزکشی لوبه کيدله..

په پخوانيو کيسو کې راغلي چې دا لوبې د لومړي ځل لپاره دآمو درياب پر غاړه تر سره کيدې. د هغې سيمې ترکانو او نورو قومونو دآسونو په وسيله دې سيمې ته مهاجرت وکړ او له آسونو يې ديوې وسيلې په توگه کار اخسيته چې په جنگونو کې په کار ورتلل.البته آسونه څو ډوله دي: او ل قطغني آسونه چې دا ډير قوي آسونه دي چې په قدرت او پايداري کې مشهور دي. دوهم ډول يې ډير غټ آسونه دي چې په فارياب او بلخ کې خلك ترې گټه اخلي. دا دواړه ډوله اسونه دوزلوبې لپاره روزل کيږي او په کار وړل کيږی. لوبغاړي معمولا نارينه وي چې له دې لوبې سره بلدتيا لري.البته په آس سپريدونکي کسان يا چپ اندازان په کلونو تمرين او روزلو ته اړتيا لري تر څو لوبې ته چمتو شي.

**پای**